تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# فی

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغۃ تقبلہ اللہ

تحریر و ترتیب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب

اولہ حصہ

ناشر

مدرسۃ حذیقۃ الاحناف



بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحيم.

# ازتشريحات النابغه

## مسئله

## اَلْفَرقُ بَيْنَ اَلْفِرَقْ.

# مسئلة الفرق بين الفرق :

أعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم قال الله عز وجل :

﴿وَاعْتَصِمُواْ بِحَبْلِ اللّهِ جَمِيعًا وَلاَ تَفَرَّقُواْ وَاذْكُرُواْ نِعْمَةَ اللّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَاء فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا وَكُنتُمْ عَلَىَ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا كَذَلِكَ يُبَيِّنُ اللّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾ ( سورة آل عمران آيت : ۱۰۳).

بله مسئله چې زيرِ بحث يې ګرځوو هغه مسئله د الفرق بين الفِرق ده دې کې ترغيبات دي اتحاد او اتفاق لره او اجتناب دي د تفرقې عقيدوي نه او ذکر د هغه دوه اويا (۷۲) جماعاتو چې کوم د اهلسنت والجماعت په مخالفت کې عقيدوي اختلاف ته پورته شوې دي سره د ذم د هغوي نه په بعضې آثارو رواياتو کې .

او دارنګې ذکر د ترک علاقه د هغوي چې هغوي سره تعلق ساتل جائز نه دي دلته پاکستان کې څه جماعات پيدا شوې دي چې هغوي د عقيدوي تفرقې او د عملي تفرقې په مينځ کې څه فرق نه شي کولې لکه جماعت المسلمين او اهل حديث کومو اياتونو کې چې تفرقه منعه شوې ده هغې نه تفرقه عقيدوي مراد ده اختلاف اجتهادي فرعي عملي نه دي مراد د قُرآن عظيم الشان تفسيرونه به هغه منو چې کوم اسلافو مونږ ته کړې وي د ﴿وَاعْتَصِمُواْ بِحَبْلِ اللّهِ جَمِيعًا وَلاَ تَفَرَّقُواْ﴾ .

ترجمه : په تفرقه يې عملي سره چې ائموو أربعوو کړې ده هيچا نه ده کړې بلکې دې ځای باندې مفسرين کرام هغه جماعات ذکر کوي چې چا په عقيده کې تفرقه جوړه کړې دا چې تفرقه عملي عند الله شنيع او قبيحه نه وه او مردوده نه وه واضح دليل په هغې باندې تعدد د اديانو دي .

که چيرته د اله العالمين په نزد باندې تفرقه عملي جرم وايي قبيحه وايي مردوده وايي نو خالق به کله هم دنيا ته مختلف دينونه ، نه وه راليږلي دين د يهوديت نصرانيت له دين د مسلمينو سره په عقيده کې فرق نه لرلو اسمان نه يوه عقيده راغلي وه ملت ابراهيمي وه او دغه شان يهودانو او عيسويانو ته هم د دغه عقيدې پر چار وه په خپل دين او کتاب کې دا چې

وروسته هغې کې جماعات پيدا شول او خپله عقيده يې خرابه کړه او په نورو نومونو يې توضيح او تقسيم کړه داد هغوي جرم وه .

خو زمونږ دين اسلام د اصل يهوديت او اصل نصرانيت سره په عقيده د توحيد کې مخالفت نه لري او د قرآن عظيم الشان دغه نصوص چې د قرآن عظيم الشان په صفت کې راځي چې **مصدق لما معکم** واضح دليل دی چې خبرې دي چې قران عظيم الشان د ماسبق دين په اصولو کې مؤيد دي مصدق دي يو مخالفت د دين اسلامي د يهوديت او نصرانيت سره په عقيده کې نه دي بلکې په عملِ فرعي جزئي کې دې بعض اشياء هلته حلال وه زمونږ دين کې حرام شو بعضې اشياء هلته حرام وه زمونږ دين کې حلال شول .

نو مخالفت د مسلمانانو له هغوي سره په دغه عملي جزئياتو کې ده که دغه عملي مخالفت د خدای تعالی په نزد مردود واي قبيح واي نو خالق به اديان مختلفه نه راليږل لکه څنګه چې عقيده کې اختلاف مردود ملعون مقبوح وه نو په هغې وجه خالق دنيا ته يوه عقيده راوليږله او ټول انبياء په دغه عقيده راوليږل او اوسه پورې له اسلافو نه همدغه يوه عقيده ده چې هغه عقيده د اهلسنت والجماعت ده .

نو عقيده تفرقه نه قبلوي عقيده نزاع نه قبلوي عقيده کې اختلاف جرم دي هر چې عمل کې اختلاف دي جرم نه دي بطورِ مثال لکه ائمو أربعو عملي تفرقه کړې ده که څوک په دوې اعتراض وکړي چې الله پاک وايي ولا تفرقوا تاسو تفرقه ولې وکړه او دا تفرقه عملي ته شامل کړي نو دا تفرقه خو بيا صحابه کرامو هم کړې وه واضحه معلومه ده چې په **رفع اليدين** باندې څه قائل وه څه نه وه قائل په **قراءت خلف الامام** باندې څه قائل وه څه نه وه قائل نو دا ټول ائمه څه د يو صحابي پسې تللي څه د بل پسې تللي که څوک اعتراض په صحابوو باندې کوي په أئموو باندې چې دوي دا تفرقه يې عملي ولې جوړ کړي په اجتهادي مسائلو کې نو دا اعتراض دې په دوي نه کوي ددوي په مقتديانو دې وکړي چې هغه دوي چا پسې اقتداء کړې وه هغه صحابه کرام وه .

نو دا اختلاف خو هغوي جوړ کړې وه عملي تفرقه جرم نه دي هر چې جرم دي هغه عقيدوي تفرقه ده او دې ايات کريمه کې منع د عقيدوي تفرقې نه شوې ده او مفسرين کرام په دغه ځای باندې هغه دري اويا (۷۳) جماعات ددې امت ذکر کوي .

﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا﴾ حبل الله قرآن عظيم الشان دي او حبل الله د قرآن عظيم الشان مقصدي عقيده ده چې هغه عقيده د اهلسنت والجماعت ده.

﴿وَلَا تَفَرَّقُوا﴾ دې نه تفرقې مه کوي يو خوا بل خوا مه ترې تاويږي تفسير الدر المنثور جلد ۳ صفحه ۷۱۲ د دې ايات کريمه شرحه کې روايات را اخلي :

**واخرج ابن ماجة وابن جرير وابن ابي حاتم عن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم افترقت بنوا اسرائيل على احدى وسبعين فرقة وان امتي ستفترق على اثنتين وسبعين فرقة.**

بني اسرائيل يو اويا (۷۱) فرق شول خو زما امت به زر دي چې دوه اويا (۷۲) فرقې شي نو دا هغه راوي **كلهم في النار** (۷۲) جماعات ياد کړې دي ورنه وروسته روايت پرې دال دي چې زما امت به (۷۳) فرقې کيږي نو کوم حديث کې چې (۷۲) راغلل دا فرق ضاله يادوي.

**كلهم في النار الا واحدة قالوا يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ومن هذه الواحدة قال.**

دا يوه کومه ده؟

**قال الجماعة.** نبي اکرم صلى الله عليه وسلم چې ځو مره کلامونه کړي دي دا هغه ناست مجلس کې صحابه کرام چې وه نو هغوي عقلاء وه او عاقل لپاره خلک اشارې کوي نو **الجماعة** ځوک دي اهلسنت والجماعت دي کله نبي عليه السلام د هغې نه په السنة سره تعبير کړې دي. ( تفسير ابن أبي حاتم ج ١٤ ص ١٤٩ بيروت )

کله د هغې نه په الجماعة سره تعبير کړې دي خو اشارت هم دې ته کوي چې هغه اهلسنت والجماعة فرقه ده.

**ثم قال: ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا﴾.**

نو تلاوت د دې ايات کريمه د دې مضمون سره دا ايات لوستل نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د دې ايات تفسير بيانوي اشاره دې ته کوي چې مراد د تفرقې نه د غه تفرقې دي چې کوم (۷۲) جماعاتو د اهلسنت سره کړې دي نه تفرقه د احنافو مينځ کې دا مسائل د (۷۲)

جماعاتو په مینځ کې فرق او تمیز دري (۳) کتابونه که تاسو واخلي او مطالعه یې کړي پیدا کیږي چې یو د هغې نه کتاب د الفرق بین الفرق دي او دا په دې باب کې ډیر ښکلي کتاب دي امام عبد القاهر بن طاهر بن محمد البغدادي المتوفی سنة ۴۲۹ تقریباً د امام بیهقي سره قریب دي او ده پوره کار په دې مسئله باندې کړې دي او دویم کتاب التبصیر في الدین وتمیز الفرقة الناجیة عن الفرق الهالکین داد طاهر بن محمد الأسفرایني کتاب دی هغه تقریباً د هغې نه هم د مخکنو علماء نه دي بیا ده ډیر تفصیل کړې دي او د هریو ډلې د تسمې وجهې بیان کړې ده بیا هغه جماعات چیرته څرګند شوې او بیا هغه جماعات مقابله کې د کوم وخت بادشاه وه چې ددوي مقابله یې کړې ده او څه نومیده نو ډیر تفصیلي دي.

او دریم الابانة عن شریعة الفرقة الناجیة و مجانبة الفرق المذمومة د حافظ ابن بطة العکبري الحنبلي هغه تقریباً ددوي هم عصر دي خپل سند لري د حدیثو ډیر ښائسته کتاب دي ٦ جلد ده ابانة معنی جدا والې دا اهلسنت والجماعة د اهل زیغ نه په دې مسئله یې لیکلي.

یو کتاب بل دې چې تاسو د یهودو او عیسویانو (۷۱) او (۷۲) جماعته یې په تفصیل سره بیان کړې او د هغوي نومونه یې ذکر کړې دي او د هغوي د عقیدو ذکر یې کړي او د امت محمدي (۷۳) جماعته ذکر کړي او جامع کتاب دي.

الملل والنحل د امام الشهرستاني دي د متکلمینو نه یو امام دي او هغه نور هم تهول ده نه اخذ کوي او په دې باب کې ډیر ماهر دي.

تفسیر الدر المنثور جلد ۳ صفحه ۷۱۹ دویم روایت ذکر کوي:

واخرج احمد وابوداؤد والحاکم عن معاویة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان اهل الکتاب تفرقوا في دینهم علی اثنتین وسبعین ملة وتفترق هذه الأمة علی ثلاث وسبعین ملة کلها في النار إلا واحدة وهي الجماعة.

اهل کتاب خپل دین کې (۷۲) ډلې شوې وه او زما دا امت به په (۷۳) ملتو تقسیم شي ګوره دلته اطلاق د لفظ د ملة وشو او هغه مخکې حدیث کې اطلاق د لفظ د فرقې شوې وه اګر که لفظ د فرقې خو عام دي که په عمل کې تفرقه راشي لغتاً به هم شامل شي خو په ایات کې د لاتفرقوا نبي اکرم صلی الله علیه وسلم دا جماعات یاد کړې دي او دلته د فرقې په ځای لفظ د

ملة راغي نو ملة او مذهب او دين ددوي په مينځ کې عرفي فرق څه شي دي سره د ملة إصطلاح فقهاء او محدثين چيرته کوي د دين اصطلاح چيرته کوي او د مذهب چيرته کوي.

ملة دوي عبارت ګرځوي د تګلارې عقيدوي نه او مذهب تګلاره فرعي عملي نه او هر چې دين دي جامع دي دواړو لره تګلاره عقيدوي او عملي نو که څوک درنه تپوس کوي چې په ملة د چا يې اصطلاح داده چې ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ يعنې محض عقيده کې د هغه پسې ځمه او که څوک درنه تپوس وکړي چې په مذهب د چا يې نو د هغه ستا مُقتَدیٰ چې تا پسې عمل کې په جزي فرعي کې اقتداء کړي د هغه نوم به اخلي.

او که څوک درنه تپوس وکړي چې په دين د چا يې نو د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوم به ځکه اخلي چې په عقيده او عمل دواړو کې د محمد مصطفى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې اتباع ده.

مذهب په معنى د تګلارې باندې ځاى د ذهاب لاره د ذهاب په عملي جزئياتو کې دې ته نوم وګرځيده.

جماعة المسلمين يوه فرقه ده ټول جهلاء په کې راغونډ دي علماء په کې نشته هغوي څه کتب ليکلي دي او په هغې کې بې ځايه اعتراضات کړې دي دومره ګستاخانه الفاظ يې استعمال کړې دي او يو عنوان يې داسې ورکړې واي مذهب ليټرين ته وايي بيا يې هغه حديث پيش کړي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به کله اراده وه د قضاء حاجت لپاره نو:

أُبعد في المذهب. نو هغلته مراد د مذهب نه څه شي دي مصدرِ ميمي دي: أُبعد في المذهب معنى أُبعد في الذهاب إلى الحاجة، لرې والې به يې کولو په ذهاب الى الحاجة کې نو دوي دومره جهلاء دي جماعت المسلمين والا چې مذهب کومه اصطلاح د فقهاء محدثينو د امت کې په حق د مذاهبو اربعوو کې استعمال ده دلته مذهب مصدرِ ميمي نه دي هغه د ظرف صيغه ده او په کوم حديث کې چې راغلي چې أُبعد في المذهب هغه مصدرِ ميمي مراد دي.

نو دوي د مصدرِ ميمي او د ظرف صيغې ترمينځ فرق نه شي کولې هغلته اوس څوک دا معنى کولې شي چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُبعد في المذهب په اربعة مذاهبو کې وه لرې به په کې لاړو داسې جهلاء دي.

## حکایت :

دمتنو د علاقې یو امیر یې دلته راغلې وه روژه وه مازدیګر کې راغې ماته یې وویل چې ما ستاسو بیان واوریدلو چې په دې ډلو او جماعتونو دې رد کړې وه او زما ډیر خوښ شو ما وویل څه کیدې شي سړي به د وهابیانو سره وران وي دې اوس د جماعة المسلمین نه وه .خو لکه ده وویل چې دې له دې ډلو سره وران دي او دې به مطلق د تفرقې خلاف وي وایي ګوره دې امت کې څلور مذهبونه جوړ شول .او دا هم امت کې تفرقه ده او تفرقه خو د مشرکینو کار دي زه پرې پوهه شوم چې دا خبره یې وکړه چې سړي خو سم سړي نه دي دا خو د جماعة المسلمین نه ډي ماورته وویل ته کوم ځای نه راغلې یې وایي زه له متنو نه راغلې یم .

د متنو د حلقې د جماعة المسلمین امیر یمه ما ورته وویل ته او سه پورې د اختلاف عملي او عقیدوي فرق نه شي کولې دا کوم چې منعه ده دا په عقیده کې اختلاف منع ده په عمل کې خو جرم نه دي نه وایي دا حنفیت شافعیت مالکیت حنبلیت دا خو سم ثابت نه دي او دا لویه تفرقه ده چې دین کې جوړه شوې ده نو دغه وخت کې هیڅوک هم راسره نه وه چې ریکاډ مې ترې نه کړې وای مونږ دوه په دوه ناست وو ما ورته وویل چې داسې وکړه چې ته هم ځان ته یو نوم کیږده دعوی کیږده زه به یې هم کیږدم ته یې هم ثابت کړه زه به یې هم ثابت کړم.

ما ورته وویل ته څه شي یې وایي زه مسلم یم ما ورته وویل مسلمان یې وایي نه نا مسلمان نه یم مسلم یمه ډیر جاهل دي چې ته ورته ووایي مسلمان یې وایي نه نه مسلمان به نه وایي مسلم به وایي نو هلکه ته خو پختون یې که عرب یې مسلمان د مسلم معی ده کنه نو دومره احمقان دي وایي نه مسلمان قران او په سنت کې نشته مسلم راغلې دي مسلم یمه خو مسلمان نه یمه ما ورته وویل صرفِ مسلم یې که حنفي مسلم یې وایي نه صرف مسلم یم ما ورته وویل چې ستا دا دعوی شوه چې صرف مسلم یې .

او زما دا دعوی ده چې حنفي مسلم یمه صحیح شوه وایي صحیح ده ما ورته وویل زما دا دعوی ده چې زه حنفي مسلم یمه ﴿ مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَٰكِن كَانَ حَنِيفًا مُّسْلِمًا ﴾ هغه حنیف مسلم وه زه هم حنیف مسلم یمه او ته د ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ په دین او په ملة

باندې نه يې ځکه ته خو صرف مسلم يې او هغه حنفي مسلم وه.

دلته سړي ټوپونه شروع کړه وايي نه هغه خو يو شان حنفيت دي او دا بل شان حنفيت دي ما ورته وويل چې يو شان او بل شان په کې نشته دي زه د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ مقلد يمه هغه ته ابو حنيفه ځکه وايي چې هغه لازم الحنفية وه هغه حنفيت چې کوم حنفي ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ وه هيڅ فرق نشته دې همغه حنفيت دي.

بل په کې چا راوړې دي ما ورته وويل چې نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي:

**انما بعثت على الحنفية**. زه مبعوث په حنفيت يم ما ورته وويل زه حنفي مسلم يم د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په دين يمه او ته خدايه د چا په دين راغلې يې ته خو سره د هغه په دين هم نه يې هله به د هغه په دين شي چې حنفي ځان ته ووايي اوس يې د شرم نه ځان ته حنفي هم نه شو ويلې هغه حنفي يې هم ځان ته نه ويل په ضد کې راغلو ما ورته وويل ته صرف مسلم يې او صرف مسلم منافق ته ويل کيږي.

﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا﴾ منافقينو ته وايي چې مسلمين يې خو مؤمنين نه يې ما ورته وويل ته د منافقينو نه يې د مسلمينو نه يې خو د مؤمنينو نه، نه يې.

نو ماته يې وويل چې دا خو به ته د حنفي لپاره ثبوت پيش کړي دا شافعي مالکي او حنبلي دوي د پاره څه دليل دي ما ورته وويل پردي جنګونه زما کور ته مه راوړه څه چيرې د شافعي نه دا تپوس وکړه زه حنفي يم دليل مې درکړو درته.

بيا دوه دي ته هم حصار نه شو لاړ زما يو دوست وه هغه کره تللې وه هغه زما دوست بيا ماته وويل چې هغه وويل چې ما له دوي سره دوه دي ځکه ونه خوړله چې دا روژه ماتي کې دوي غوښې راوړې دا مذبوحې د مشرکينو دي دا زمونږ لپاره حلالې نه دي ځکه مې روټې ورسره ونه خوړله.

او ددوي همدا عقيده هم ده زما يو شاګرد ده هغه ددوي يو مخفي اجتماع ته ورغلي وه ددوي يوه خصوصي اجتماع وه د جماعة المسلمين مشر ډاکټر مسعود چې کوم دي هغه په انګلينډ کې ناست دي ۲۳ کاله کيږي پاکستان کې دا تنظيم شروع دي تر اوسه پورې پاکستان په سترګو هم نه دي ليدلې او د انګلينډ نه دوي ته په ټيليفون باندې تربيه ورکوي

دلته پاکستان کې د هرې ضلعې لپاره دوي یو امیر لري.

نو هغه اُمراءیې راغونډ وه په یو خاص ځای کې ددوي یو مخفي شوری وه نو زما دغه شاګرد وویل چې زه هم چا په کې دعوت کړمه ځکه جماعة المسلمین مې رشته دار وه زه یې هم ځان سره بوتلم وایي چې لاړو هلته نو مجلس شروع شو تقاریر وشول نو دې کې وایي دوه کسان وه تک تور بد شکله چانتي یې اچولې وي او ګرنیټونه هم ورسره وه وایي دې امیر بیان وکړو چې دې مسلک ته زمونږ داسې قرباني والا ځوانان په کار دي چې دوي ټول عمر دین لپاره وقف کړې دي او دوي ته چې مونږ کله هم ویلي دي چې فلاني نفر شوټ کړي نو داد شوټ کولو والا دي او ددوي اوصاف یې بیان کړل.

نو زما هغه شاګرد ډیر سیاسي سړي هم دي هغه وویل وایي چې کله د ډوډۍ وخت راغې نو زه هغه دوه کسانو ته ورنزدې شوم هغه دوي کې وایي چې قرباني والا وه دوي سره مې نزدې ځان ته ځای برابر کړو نو ډوډۍ شروع شوه نو دا دوه کسانو وایي ډوډۍ خوړله سبزي وغیره خوړل او غوښه یې نه خوړله وایي ما ورته وویل چې دا خوري کنه هغه خپله روټي کې هم نه خوړله وایي مونږ ته د انګلینډ نه امیر صاحب ویلي چې پاکستان کې لږ د غوښو سره احتیاط وکړي داد مشرکینو مذبوحې دي دا تاسو ته حلالې نه دي نو دا مونږ نه خورو مونږ باندې امیر صاحب بندې کړې دي.

وایي ما ورته وویل چې بیا به یې مونږ هم نه خورو وایي نه نه تاسو یې خوري تاسو ته پرواه نه کوي مونږ باندې ددې شیانو پابندي لګیدلې ده نو دومره پورې هغوي د پاکستان خلکو ته مشرکین وایي او ددوي حلاله مرداره ګڼي ډیر احمق خلک دي.

د تفرقې عقیدوي او عملي فرق نه شي کولې او کوم ځای کې چې رد په کومو تفرقو راغلې دي هغې کې دوي هم مبتلاء دي هغه په ائمو و چسپانوي.

بل حدیث تفسیر دُر منثور جلد ۳ صفحه ۷۱۹ کې ذکر کوي:

**واخرج الحاکم عن عبدالله بن عمرو قال قال رسول الله ﷺ یأتي على أمتي ما أتى على بني اسرائیل حذو النعل بالنعل.**

برابر نعل بالنعل پسې به دوي اقتداء کوي.

حتى لو كان فيهم من نكح أمه علانية كان في أمتي مثله إن بني اسرائيل افترقوا على احدى وسبعين ملة وتفترق أمتي على ثلاث وسبعين ملة كلها في النار الا ملة واحدةً.

بعضې ځای کې (۷۱) راغلي او بعضې ځای کې (۷۲) تطبيق دادی چې (۷۱) عيسويان دي او (۷۲) يهودان دي دواړو نه تعبير په بنو اسرائيلو شوې دي کله به نبي اکرم ﷺ بني اسرائيل کې نصرانيان ياد کړي دي او کله يې يهودان ياد کړې دي.

فقيل له ما الواحدة قال ما انا عليه اليوم و أصحابي اليوم.

چې زه ورباندې يم نن ورځ او زما صحابه ورباندې دي.

ما انا عليه اصحابي معنى د اهلسنت خپله ورکوي ځکه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په کوم لار روان وي هغې ته سنت وايي ثوک چې د هغې پسې وي اهلسنت دي صحابه چې په کومه لاره روان وي جماعت د صحابوو دي او ثوک چې هغوي پسې ځي اهل الجماعت دي نو اهلسنت والجماعة ددې معنى شوه.

قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللَّهُ د يوم تبيض وجوه وتسود وجوه په شرحه کې په دې ځای کې د عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت را اخيستې دي د ما انا عليه و اصحابي ترجمه يې کړې په اهلسنت والجماعة سره د بي بي عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا روايت الملل والنحل را اخيستي دي چا تري تپوس کړي چې ما انا عليه واصحابي ثوک دي وايي هم اهل السنة والجماعة.

دا حديث چې کومو کتبو را اخيستي دي حوالې دادې:

مسند احمد بن حنبل جلد ۴ صفحه ۱۰۲، سنن الترمذي جلد ۵ صفحه ۲۶ بيروتي چاپ، المعجم الكبير للطبراني جلد ۱۴ صفحه ۳۰۱، السنة للمروزي جلد ۱ صفحه ۲۰.

وزاد وهي الجماعة فاعتصموا بها فاعتصموا بها.

دا الفاظ يې زيات کړي په مرفوع حديث کې.

دا چې زه ورباندې يمه دا جماعة دي يعنې دا اهلسنت والجماعة فرقه ده فاعتصموا بها فاعتصموا بها منګولې پرې ولګوي نو دا ترجمه د هغه ايات شوه چې: ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا﴾ حبل الله د غه عقيده د اهلسنت والجماعة شوه.

المستدرک جلد ١ صفحه ١٢٨ دلائل النبوة للبيهقي جلد ٦ صفحه ٥٤٢ شرح السنة جلد ١ صفحه ٢١٣ مسند الشاميين جلد ٢ صفحه ١٠٨.

الاربعون حديثاً للأجيري جلد ١ صفحه ١٥ هغې کې دا الفاظ زيات دي چې دغه (٧٢) جماعات چې دي په دې کې بيا اسلاف لکه محدثينو ابتدا، چې وه او بيا د هغې نه بعد متأخرين داسې متأخرين نه دي بلکې هغه هم نهه سوه (٩٠٠) کاله مخکې متقديمنو نه دي په هغه زمانه د محدثينو کې دا څلور (۴) نزاعات معروف وه نزاع د خوارجو روافضو او د قدريه وو او د مرجئه وو دا ډير مشهور وه.

نزاع د معطله او د مشبهه وو دومره نه وه نو ددې وجې نه اسلاف محدثين دا (٧٢) ډلې تقسيموي په اصولو کې څلورو جماعاتو ته دوي وايي چې اصول ددې څلور دي او هر يوه ډله بيا اتلس (١٨) جماعاته دي نو اتلسو ته چې په څلورو کې ضرب ورکړي نو دوه اويا (٧٢) شوې.

دويمه طريقه د تقسيم داده چې اصول ددې څلور جماعاته دي خو دې کې شيعه ګان شل (٢٠) دي خوارج شل (٢٠) دي دوه نور چې قدريه او مرجئه دي شپاړس (١٦) شپاړس (١٦) دي.

دريمه طريقه د تقسيم داده چې اصول ددې فرقو سته (٦) دي او هر يوه ډله بيا دولس (١٢) دولس (١٢) جماعته ده نو شپږو ته چې په دولسو کې ضرب ورکړي نو دوه اويا (٧٢) ډلې شوې دا درې طريقې د تقسيم شوې دي بيان کړې دي.

او ابن تيميه چې کوم تقسيم بيان کړې دي چې اصول ددې څلور دي خوارج دي روافض دي او قدريه دي مرجئه دي دا څلور ډلې شوي دې کې شيعه ګان شل (٢٠) جماعته، خوراج شل جماعته او قدريه او مرجئه شپاړس (١٦) شپاړس (١٦) جماعته دي.

أجيري دغه عبارت ذکر کړې دي:

**حدثنا ابوبکر بن ابي داؤد قال حدثنا المسيب بن واضح قال سمعت يوسف بن اسباط يقول أصول البدع أربع.**

نو په نزد د محدثينو او فقهاو اهل بدعت دا دوه اويا (٧٢) ډلې دي دوي ته بدعتيان ويل کيږي چې دوي عقيده نوي پيدا کړه.

**الروافض والخوارج والقدرية والمرجئة ثم تتشعب كل فرقة ثماني عشرة طائفة فتلك اثنان وسبعون فرقة** . دا طريقه د تقسيم شوه نو (١٨) (١٨) (٧٢) فرقې شوې ټولې .

يوه بله طريقه چې امام قرطبي رحمه الله د ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا﴾ په ذيل کې بيان کړې ده او ډير ښه تفصيل يې کړې دي نو هلته بايد مراجعه وشي د زيات تفصيل لپاره .

تفسير قرطبي جلد ۴ صفحه ۱۶۰ هغه وايي چې اصول د فرقو شپږ دي دوي دې ځای کې له هغه حديث نه استدلال نه دي کړې چې کوم د ترمذي په دويم جلد کې روايت دي عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام چې :

**خط النبي صلى الله عليه وسلم خطاً** . نبي عليه السلام يو خط او ښکه بيا د هغې يمين طرف ته هم خطوط جوړ کړل او په يسار چپ طرف يې هم ترې خطوط جوړ کړل او وي ويل چې دا صراط مستقيم دي دا دې صراط مستقيم نه جهنم ته لارې تللې دي دغه خطوط په هر طرف کې ۳ درې درې خطوط وه يو طرف هم درې خطوط وه بل طرف هم درې خطوط وه نو په دغې کې اشاره وه هغه ستة شپږو اصولو د فرقو لره چې دا درې افراطيان دي او دا درې تفريطيان او دغه شپږ جماعته چې علامه قرطبي ذکر کوي هغه وايي :

**فقد ظهر لنا من اصول الفرق الحروية والقدرية والجهمية والمرجئة والرافضة والجبرية**

دا خوارج دي ځکه اول له اجتماع يې په حرورا کې شوې وه بله قدريه بله جهمية بله مرجئه بله رافضة بله جبريه .

دا اصول يې بيان کړې دي .

**وقال بعض اهل العلم اصل الفرق الضالة هذه الفرق الست ، وقد انقسمت كل فرقة منها اثنتي عشرة فرقة فصارت اثنتين وسبعين فرقة** . دده تقسيم په دې شکل باندې دي .

او ما هم دده تقسيم پسې ذهاب کړې دي او دده په طريقه تللې يمه اګر که صاحب د الفرق بين الفرق د اسلافو تقسيم را اخلي هغه شيعه ګان شل جماعاتو کې تقسيموي خو دې کې دو مره خبره ده چې که تاسو الفرق بين الفرق يا التبصير وګورې کيدې شي دا فرق او د هغوي اسامي او جماعات تاسو د ۱۵۰ نه هم زيات پيدا کړې ډير زيات دي نو بيا به شبه درته نه پيدا کيږي چې دا خو (۷۲) وه دا زيات څنګه شول .

هغه دادی چې تول وګوري دوي وايي چې څه جماعات د خوارجو دا سې دي چې هغه من فرق المسلمين نه دي يقيني كافر دي هغوي ته غلاط الخوارج وايي هغوي دوي زير بحث دغه ځای کې نه ګرځوي .

نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې کې هغوي ته اشاره نه ده کړې څه فرق د شيعه ګانو دي چې هغوي يقيني كافر دي هغه غلاط الروافض دي هغه په دې دوه اويا (۷۲) جماعاتو کې نه دي داخل دا دوه اويا (۷۲) جماعاته من فرق المسلمين دي دوي باندې اطلاق د کفر تغليظ دي دا حقيقت کې ضال دي مضل دي اهل زيغ دي .

کوم چې دوي کې غلاط دي هغه په دې دوه اويا (۷۲) کې نه دي راغلي نو که تاسو الفرق بين الفرق يا وغيره کې چيرته ډلې زياتې پيدا کړي هغه به دوي هغه (۷۲) نه يادوي هغه غلاط به يادوي مثال په طور شيعه ګانو کې يو جماعت دي چې هغوي وايي ، وايي جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ خطاء شو دا وحي حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راتله دا يې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته يوړه نو دغه جماعت په اتفاق د علماء د نبوت منکر دي د وحي منکر دي نو دا خو د غلاطو نه دي يا بعضې نور جماعات ددوي .

دې کې په خوارجو کې څه جماعات وه چې هغوي د لمسی سره د نيکه نکاح جائز ګنله د وريرې سره يې جائزه ګڼله او درانګې خورزه او خاله وريره او عمه دا يې په يوه نکاح کې جمع کول جائز ګڼل هغه د غلاطو نه دي هغه دوي دې فرقو کې نه داخلوي .

ددې نه بعد زه يو څو روايات ذکر کوم چې په هغې کې د اتفاق طرف ته رغبت دي او اجتناب دي له اختلافاتو نه او بل ددې خبرې ذکر کوم چې ترڅو عقيده د اهلسنت و الجماعت نه وي نو عمل نه قبليږي که دې (۷۲) جماعاتو کې هر جماعت کې څوک داخل شول اعمال مقبول عند الله نه دي .

دا چې اعمال مقبول عند الله نه دي په کومه معنی قبول دوه معناوی لري په نزد د محدثينو معروف معاني يو قبول دي په معنى د وقوع الشيء في حيز مرضات او دويم قبول دي په معنى د فراغ الذمة سره نو چې کوم علماء وايي چې ددوي اعمال مقبول نه دي دا په معنى د فراغ الذمي نه دي چې ګنې ددوي ذمه نه ده فارغه شوې دا په معنى د وقوع الشيء في حيز

مرضات الله يعني دا داسې قبول نه دي چې د مانځه څه اجر دې دوي ته په اجر ور کول شي يا دوي ته به اجر نه ور کول کيږي.

حج چې کوي روژه نيسي فقط فراغ الذمة به يې راشي خو ددې چې کوم أجور دي او کوم رفع د درجاتو پرې راځي هغه به دوي ته نه ور کول کيږي نه شيعه ته نه خارجي ته او نه دې نورو ډلو ته.

مسند الطيالسي جلد ۲ صفحه ۴۸۱ کې روايت ذکر کوي دا مې ددې لپاره دلته ذکر کړو او خاصتاً دې مجاهدين غور پرې وکړي چې د اهلسنتو له خوارجو سره اجماعي اصولو کې مخالفت په څه شي کې دي يو اجماعي اصل دي چې خوارج مرتکب د کبيرې کافر ګڼي او مخلد في النار يې ګڼي او اهلسنت يې نه ګڼي، محدثين دي که فقهاء دي مرتکب د کبائرو کافر نه ګڼي او مخلد في النار يې نه ګڼي.

دا هغه اجماعي فرق دي د اهلسنت له خوارجو سره.

دويم تکفير د مَن عَدیٰ کوي چې څوک ددوي د تنظيم او ډلې نه بهر وي کافر ورته وايي اهلسنت ددې مخالف دي او اهلسنت اهل قبله وو کې هيچا ته هم کافر نه وايي ترڅو چې د غلاطو نه، نه وي ګرځيدلي لکه هغه کوم ضرورياتو د دين نه انکار راشي ښکاره بعضې جماعات دي امت کې پيدا شوې دي چې هغه زنادقه ددې امت وه له هغې سوا، او چې کوم دا دوه اويا (۷۲) جماعات دي دوي هم تکفير نه کوي بلکې تضليل يې کوي.

بل دا اجماعي عقائدو نه داده چې اهلسنت د عادل بادشاه اطاعت لازم ګڼي او د جائر او ظالم بادشاه اطاعت هم لازم ګڼي د ظالم بادشاه به داسې اطاعت کوي لکه څنګه چې د عادل بادشاه کوي صرف د کافر په اطاعت نه کوي خوراج چې اجماعي اصولو کې له اهلسنت سره مخالف دي خوارج وايي چې د عادل بادشاه به اطاعت کوي او د جائر به داسې مقابله کوي لکه د کافر بادشاه چې کوي.

اوس د مجاهدينو په صفونو کې ډير ځايونو کې خوارج دننه شوې دي او هغوي د کافر بادشاه او د جائر بادشاه فرق نه شي کولې د پاکستان بادشاه جائر دي کافر نه دي او د جائر بادشاه مقابله کې جهاد کول د اهلسنت عقيده نه ده داد خوارجو عقيده ده او دا بنيادي فرق

دي د اهلسنت له خوارجو سره.

او كوم مجاهدين چې په دغه سرګرمي کې راغلي دي يا د لاعلمي له وجې نه دي او يا علماء دي خو د علم كلام نه خبر نه دي خپل اصول ورته نه دي معلوم چې اهلسنت چا ته وايي دا هغه خوارجو ولوبول زمونږ احناف علماء ځان يې پوهه نه کړل په ځای د كافر د مقابلې د ظالم مقابلې ته ودرول دد دې نيکه ثمره نه وي داد اغيارو خارجيانو لاسونه وي مجاهدين او خاصکر د طالبانو وينه خو ګرمه ده هغوي ته د جهاد ټکي وايه نور يې بيخي په اصولو خبره وه مه درسره به منډې وهي.

نو جهاد خپلو اصولو کې کوي بې ګناه مسلمانان وژل په مسجدونو کې بمونه خلاصول داد جهاد نوم نه دي داد جهاد بدنامول دي او چې څوک هم دا کوي عام مسلمانان وژني نو دغه سړي هسې د جهاد په نوم به خارجي ګوډاګي وي او د مجاهدينو صف به بدناموي.

او مجاهدينو ته هم دا په کار ده چې په يو ځای کې يو بم خلاص شي ودې ګوري چې هغلته عام مسلمانان څومره مړه شوې دي که مسلمانان په کې ډير مړه شوې وي او ددوي له مجاهد نه غلطي شوې وي نو دوي ته نه دي په کار چې د هغې ذمه داري قبوله کړي چې ګنې دا توره مونږ کړې ده څه توره دې کړي مسلمانان دې مړه کړل نو بعضې شيانو دوي ته قبلول نه وي په کار بس وه دې وايي چې زمونږ له مجاهد نه غلطي شوې ده وژل يې کافران مسلمانان ترې مړه شول نو ته خو يې بيا مه قبلوه چې دا مونږ کړې ده اعلاناً په ريډيو وايي چې ددې ذمه داري مونږ قبوله کړه.

دا بنيادي فرقونه دي او دا ما ددې لپاره ذکر کړي تر څو د مجاهدينو سترګې خلاصې شي ترڅو خپل صف نه خوارج لرې کړي او که خامخا د ضرورت پر بناء باندې وخت داسې راغلې وي چې يا د نفرو کمبود دې ده يا د پيسو کمي وي او مجاهدينو ځای ورکړو وهابيانو ته نو چې ځای يې ورکړو نو په دې شکل نه چې د وهابيانو اصول را واخلي نه خپل اصول به په هغوي چسپانوي.

زمونږ اصول څه شي دي د ظالم بادشاه مقابله کې به مونږ قيام نه کوو او خوراج وايي چې د ظالم بادشاه مقابله کې به قيام کوو دا هغه اجماعي اصل او فرق دي سره نو چې دا فرق

دي نو اصلي سالک د تحريک اسلامي هغه به د مسلمان بادشاه مقابله کې قيام نه کوي بلکې د کافر بادشاه مقابله کې به قيام کوي .

نو حديث د مسند الطيالسي جلد ۲ صفحه ۴۸۱ :

**حدثنا أبو داؤد قال حدثنا أبان عن يحيى بن أبي كثير عن زيد بن سلام عن أبي سلام عن الحارث قال قال النبي** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **و أنا أمركم بخمس .**

د پنځه شيانو امر درته کوم :

**امرني الله عز وجل بهن** . ماته زما رب کريم په هغې امر کړې دي .

**الجماعة** . يو به د جماعت اهلسنت نه ، نه جدا کيږي دا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ منعه کناية او اشاره کوي چې د اهلسنت و الجماعت عقيده به نه پريږدي .

**والسمع** . د علماء اقوال به اوري . **والطاعة** . د بادشاهانو به اطاعت کوي .

**والهجرة** . تکليف درباندې راغې کافر درباندې مسلط شو هجرت به کوي .

**والجهاد في سبيل الله** . او جهاد في سبيل الله به کوي .

دا **والسمع** ، سمع د اقوالو د علماو ده او والطاعة طاعت د أمراء ده دا دوه ډيرې ضروري خبرې دي خوارج ددې زمانې چې وهابيان او اهل حديث دي هغوي ددغه بنيادي اصل مخالفت کړې دي سمع د اقوال الفقهاء نه کوي وايي د چا خبرې اوريدو ته څه ضرورت دي قرآن او حديث نه إخذ کوو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سمعه لازمه کړې په امت باندې چې تاسو به اقوال د فقهاء اوري طاعت د امراء به کوي بيا فرمايي :

**فمن فارق الجماعة قيد شبر** . څوک چې د اهلسنت والجماعة د ډلې نه يو ولويشت هم وځي جدا شي .

**فقد خلع ربقة الاسلام او الايمان من عنقه** . راوي شک کوي .

د اسلام يا د ايمان کړه يې د څټ نه بهر شوه .

**او الايمان من رأسه** . يا يې دا الفاظ ويلي : **الا ان يراجع** . مگر چې رجوع وکړي .

دارنګې المحرر الوجيز جلد ٦ صفحه ۳۳۴ چې داد محاربې تصنيف دي په ۵۴۲ کې

وفات دي :

**وقال الحسن:** حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

**ادركت ثلاثمائة من الصحابه.** دري سوه (۳۰۰) صحابو و ملاقات مې کړې دي .

**منهم سبعون بدريا.** اويا (۷۰) بدري صحابوو سره مې ملاقات کړې دي .

**كلهم يحدثني.** ټولو راته حديث بيان کړې دي .

**ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال من فارق الجماعة قيد شبر فقد خلع ربقة الاسلام من عنقه.** څټ نه يې د اسلام کړۍ وځي .

**فالجماعة.** وايي جماعة څه ته وايي .

**ان لا تسبوا الصحابة.**

اجماعي اصول هغه زمانه کې داوه ځکه هلته خوارج او روافض وه خوارجو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کنځل کول او روافضو حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کنځل کول نو حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي جماعت د اهلسنت داده :

**ان لا تسبوا الصحابة.** صحابوو ته به کنځل نه کوي .

**ولا تماروا في دين الله.** د خدای په دين کې به جګړې نه کوي .

عقيده کې به اختلاف نه کوي دين الله نه مراد عقيده ده او ممارات مخاصمه ده جګړه به په عقيده کې نه کوي .

**ولا تكفروا أحداً من أهل التوحيد بذنب.** مسلمان به د ګناه په وجه نه کافر کوي .

همدغه عبارت الكشف والبيان عن تفسير القرآن را اخيستي جلد ۹ صفحه ۲۸۲، او تفسير الثعالبي را اخيستي جلد ۴ صفحه ۷۵ کې .

غريب الحديث لابن قتيبة جلد ۱ صفحه ۳۱۸ کې بل روايت ذكر كوي :

**ان الله لم يرض بالوحدانية.** په ځانوالي الله تعالى نه راضي کيږي خدای تعالی د جماعت سره دي له ځانته والي سره نه دي چې سړي جمع غفيره پريږدي او ځان له بيله ډله جوړه کړي .

وما كان الله ليجمع امتي على ضلالة بل يد الله عليهم فمن تخلف عن صلاتنا وطعن على ائمتنا فقد خلع ربقة الاسلام من عنقه .

څوک چې ځان ته شو زمونږ د امامانو پسې مونځ پریخودو زمونږ په ائمووېې طعنه شروع کړه د اسلام کړئ ځنې نه بهر شوله .

شرار امتي الوحداني . زما په امت کې بد سړي هغه ځانته ډلي والا دي .

المعجب بدينه . هغه چې په خپل دین ډیر خوشحال دي .

والمرائي بعمله . هغه چې ریاکار په عمل دي .

المخاصم بحجته . هغه چې دلیل باز او جګړه مار دي .

دا زما امت کې شري سړي دي . او بیا لیکي :

من عمل لله في الجماعة . څوک چې اهلسنت والجماعة کې یو عمل کوي .

تقبل الله منه . الله به یې ترې قبول کړي .

وان أخطأ . او که خطا شو .

غفر الله له . بخښنه به ورته وکړي .

ومن عمل لله في الفرقة . که چا د اهلسنت نه تفرقه وکړه او د خدای د رضاء لپاره یې عمل کوه .

فأصاب . حق ته هم ورسیده .

لم يتقبل الله منه . بیا یې هم ترې خدای تعالی نه قبلوي .

فان أخطأ . او که لاپسې خطاء شو .

فليتبوأ مقعده من النار . بیا خو دې جهنم کې تیکانه تیاره کړي ځان ته .

که جماعت د اهلسنت سره وي حق ته رسیدلي خو اجر دي که نه رسیدلې خطاء وي بخښنه درته کیږي ، که ددې نه احداني وي په تفرقه کې واقع شوې که حق ته په کې ورسیدلي اجر نشته او که ونه رسیدلي جهنم دې تیکانه ده .

**ان أمتي لا تجمع على ضلالة فإذا رأيتم الاختلاف**. كله مو چې اختلاف وليدلو.

**فعليكم بالسواد الأعظم**. تاسو اتباع د سواد اعظم وکړي جمع غفیره یادوي.

**وليست كل جماعة اجتمعت هي في هذه السواد الأعظم**. هره ډله چې راغونډه شي اجتماع جوړه کړي دا وايي سواد اعظم نه دي.

**انما السواد الأعظم جملة الناس**. سواد اعظم ټول خلک دي.

**التي اجتمعت على طاعة السلطان**. هغه چې د بادشاه په اطاعت راغونډ وي.

**براً كان او فاجراً**. نیک بادشاه وي که فاجر بادشاه وي.

**ما اقام الصلواة**. څو چې مونځ کوي، په مانځه چا ولید چې مونځ کوه بادشاه دي او نور ظالم فاجر دي نو د هغه اتباع به کوي نیک وي که فاجر.

المعجم الكبير د طبراني جلد ۱۰ صفحه ۲۰۸:

**عن سعيد بن جبير عن ابن عباس رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من عمل لله في الجماعة فأصاب قبل الله منه وان اخطأ غفر له ومن عمل يبتغي الفُرْقَةَ فأصاب لم يتقبل الله منه وان اخطأ فليتبوأ مقعده من النار**.

دا صرف ترغیبات وه اتباع د اهلسنت والجماعة لره او اجتناب وه ترهیبات وه د تفرقې نه چې څه خیر په کې نشته دي دا لوی نوم د اهل سنت والجماعة لره چې جامع دي اربعة مذاهب لره او جامع دي اربعة طرق د صوفیوو لره او فرقتین د اهل عقائدو لره.

الفرق بين الفرق امام عبدالقاهر بن طاهر بن محمد بغدادي چې کوم فرق د اهلسنت یاد کړې دي نو په هغې کې د غه جماعت ټول راغونډ کړي صفحه ۲۷٦ کې باب لګوي: **في بيان اصناف اهل السنة والجماعة**. د اهل سنت والجماعت د ډلو څو مره صنفونه دي او څو مره نوعې دي:

**صنف منهم احاطوا علماً بأبواب التوحيد والنبوة واحكام الوعد والوعيد والثواب والعقاب وشروط الاجتهاد والامامة والزعامة وسلكوا في هذا النوع من العلم طرق الصفاتية من المتكلمين**

الذين تبرأوا من التشبيه والتعطيل .

اول جماعت د متكلمينو يادوي خو هغه متكلمين چې د تعطيل او تشبيه نه پاک دي او بيزار دي مشبهه معطله نه وي وايي داد اهلسنت نه دي .

والصنف الثاني منهم ائمة الفقه من فريقي الرأي والحديث .

څه محدثين دي او څه مجتهدين د فقه دي دا دواړه جماعت دي نو بيا په دغه فقهاء او محدثينو کې به هغه مراد وي چې :تبرأوا من القدر والاعتزال چې نه قدريه وي نه معتزله وي.

نخښه به يې دا وي چې رؤية د خداى تعالى په ورځ د قيامت کې دا به مني .

من غير تشبيه ولا تعطيل . بغير د تشبيه او تعطيل نه حشر د قبورو به مني مع إثبات السؤال في القبر به مني ومع إثبات الحوض والصراط به مني د شفاعت به قائل وي دوام د نعيم الجنة به قائل وي دوام د عذاب النار على الكفرة به قائل وي .

ګورئ دوام على الكفرة او دوام د نار ابن تيميه او ابن قيم دې کې مخالف وه قول به کوي بإمامة ابي بكر وعمر وعثمان وعلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ.

واحسنوا الثناء على السلف الصالح من الأمة .

سلفو پسې به بد نه وايي من الامة .

ورأوا وجوب استنباط أحكام الشريعة من القرآن والسنة ومن إجماع الصحابة .

د استنباط د احكامو ددې اصولو نه به قائل وي .

جواز المسح على الخفين به قائل وي ووقوع الطلاق الثلاث دري طلاقه چې په يو وخت واچول شي دا مغلظ ګرځيږي ددې به قائل وي .

نن صبا وهابيان يې نه دي قائل او دا په څلورو مذهبونو کې د هيچا مذهب هم نه دي صرف د وهابيانو دي دې ليکي چې فقهاء محدثين اهل حديث هغه به د اهلسنت نه وي چې دې د دريو طلاقو قائل وي .

ورأوا وجوب طاعة السلطان . د بادشاه د طاعت به قائل وي د هغه قانون به مني فيما ليس

بمعصية .

نو اوس وايي :

ويدخل في هذه الجماعة أصحاب مالك والشافعي والأوزاعي والثوري وأبي حنيفة وابن أبي ليلى وأصحاب أبي ثور وأصحاب أحمد بن حنبل وأهل الظاهر .

مراد له اهل الظاهر نه داؤد ظاهري او ابن حزم الظاهري دي چې هغه دواړه د اهل زيغ نه ، نه وه اهل سنت وه خو اهل ظواهر وه .

(٣) دريمه ډله د اهلسنت والجماعة وايي محدثين د اسماء الرجال وه .

(٤) څلورمه ډله هغه علماء او ائمه د ادبو او نحوې چې عقيده يې د اهل سنت وي .

(٥) پنځمه ډله صاحبان د قراءات سبعه وو دي .

(٦) شپږمه ډله الزهاد الصوفية . زاهدين صوفيه دي .

الذين أبصروا فاقصروا واختبروا فاعتبروا ورضوا بالمقدور وقنعوا بالميسور وعلموا أن السمع والبصر والفؤاد كل اولئك مسؤول عن الخير والشر .

اوږد بيان يې دې کې کړې دي په آخره کې وايي :

والاعراض عن الاعتراض : ذلك فضل الله يؤتيه من يشاء والله ذو الفضل العظيم .

اومه ډله د اهل سنت : قوم مرابطون في ثغور المسلمين في وجوه الكفرة .

هغه دي چې د کافر مقابله کې په اول خط کې په جهاد باندې بوخت وي وايي داد اهلسنت يو جماعت دي .

اتم جماعت : عامة البلدان التي غلب فيها شعار اهل السنة دون عامة البقاع التي ظهر فيه شعار اهل الاهواء الضالة .

عام مسلمانان د ملکونو شول چې هغلته د اهل سنت شعارات ښکاره وي نه د اهل زيغ شعارات .

نو خلاصه دا چې اهل سنت دغه جماعات دي چې کوم ائمه د تفسير دي ائمه د عقائدو دي د نحوې دي او صوفيه دي فقهاء دي او محدثين دي .

الفرق بین الفرق جلد ۱ صفحه ۵۵ مقالات اجماعیه د خوارجو ذکر کوي :

**و قد اختلفوا فیما یجمع الخوارج علی افتراق مذاهبها** . ددوي مذاهب خپلو کې مختلف دي ډیرې ډلې دي خو هغه چې دوي پرې راغونډ دي هغه دادی :

**اکفار علي وعثمان والحکمین واصحاب الجمل** . ددې صحابوو او د معاویه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ په وخت کې چې کوم دوه حکمین وه هغه جنګ صفین کې اصحاب جمل د عائشې بي بي هغوي.

**وکل من رضی بتحکیم الحکمین** . ددوي د کفر قائل دي .

**والاکفار وبارتکاب الذنوب** . څوک چې ګناه کوي وايي کافر دي .

**ووجوب الخروج علی الامام الجائر** . او وايي چې د ظالم بادشاه مقابله کې خروج واجب دي دا اجماعي عقائد د خوارجو دي چې چیرته خارجي وي دا عقیده به یې وي چې د ظالم بادشاه مقابله کې به پاڅیږي اهلسنت والجماعة وايي چې د کافر بادشاه مقابله کې به پاڅیږي د ظالم بادشاه مقابله کې به نه پاڅیږي ځکه نیکه ثمره یې نشته ده چې پاڅیدلي .

ددغې عبارت لپاره زه درته د حاشیه رد المختار علی در المختار عبارت ذکر کوم چې اجماعي عقائد یې دادی چې د حضرت عثمان رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت علي رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ او حکمین او اصحاب جمل تکفیر به کوي نو ددغه عبارت جواب علامه شامي رَحِمَهُ اللّٰهُ کړې دي چې داد هغه زمانې خوراج داسې وه هره زمانه کې خوارج داسې نه دي چې هغه تکفیر د صحابوو کوي .

حاشیه رد المختار جلد ۴ صفحه ۲٦۲ هلته عنوان داده :

**مطلب في اتباع عبدالوهاب الخوارج في زماننا** .

د محمد بن عبدالوهاب تابعدارن چې خوارج دي زمونږ په زمانه کې د هغوي تفصیل .

**ویکفرون أصحاب نبینا ، علمت** . تاته معلومه ده .

**ان هذا غیر شرط في مسمی الخوارج** . دا شرط نه دي په تسمیه د خوارجو کې چې خامخا به خوارج تکفیر د صحابوو کوي .

**بل هو بیان لمن خرجوا علی سیدنا علي رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ** . هغه زمانه کې چې خروج کړې وه د

هغوي دا عقيده وه .

والا فيكفي فيهم اعتقادهم كفر من خرجوا عليه . دومره كافي ده چې ددوي مقابله کې څوک وي هغوي ته به کافر وايي .

كما وقع في زماننا . لکه زمونږ زمانه کې دغه مرض واقع دي .

في اتباع عبدالوهاب . د محمد بن عبدالوهاب يادوي .

الذين خرجوا من نجد وتغلبوا على الحرمين . او په حرمينو غالب شو .

وكانوا ينتحلون مذهب الحنابلة . وه دوي چې ځان ته به يې حنابله وويل .

لكنهم اعتقدوا . مګر عقيده ددوي دا وه .

انهم هم المسلمون وأن من خالف اعتقادهم مشركون . چې هم دوي مسلمانان دي او ددوي مخالف په عقيده کې مشرکان دي .

واستباحوا بذلك . په دغه عقيده دوي ځان ته روا کړي وه .

قتل اهل السنة وقتل علمائهم حتى كسر الله تعالى شوكتهم . تر دې چې مات کړو خدای تعالی قوت ددوي .

وخرب بلادهم وظفر بهم . خراب شول ښارونه ددوي او کامياب شول په دوي .

عساكر المسلمين . عساکر د مسلمينو .

عام ثلاث وثلاثين ومائتين والف . ۱۲۳۳ سنه کې دا يو عظيم جنګ له دوي سره تير شوی دي .

## حکايت :

۴۰۰ کاله وړاندې د عربو بادشاه ابوسعود نوميده او د برطانيه نه يو جاسوس راغلو په نوم د عثمان باندې دا عثمان ۲۴ کاله په عربو کې تير کړل او داسې عربي ددهزده وه چې هيچا هم دا ګمان نه کوه چې دا به انګريز وي خو وه برطانوي آو بيا ده تلاش وکړو چې د عربې د زده کړي او د علم د زده کړې نه وروسته د يوې غټې کورنې سړي يو عالم لاس کې ونيسم نو

د محمد پلار عبدالوهاب په فقه حنبلي کې دیر معروف وه او ده دوه مدرسې لرلي یوه یې په سرحد د شام باندې په عربو کې عظیمه مدرسه وه او بله مدرسه یې په ریاض کې وه خو دې د معروفو علماو نه وه او دده دا ځوي چې وه محمد لږ لږ سبقونه یې ویلي وه پوخ ملا نه وه خو ډیر سخت لوچک وه ډاکې او غلاګانې به یې کولې نو پلار یې مجبور شو چې دا ځوي علم نه کوي نو ده ته یې وویل چې له درزي خیاط سره کینه هغه به درزیتوب نه کولو خو ددې درزي دُکان ته به تلو راتلو .

دا عثمان چې وه دا جاسوس ده تلاش شروع کړو چې زه په څه شکل باندې د عبدالوهاب کورني کې سري پیدا کړم دا معروف دي خلک یې مني نو دغه دکان ته به دا محمد راتللو نو دا عثمان هم دلته رابلد شو ددې درزي دکان ته به عثمان هم راتلو او محمد به هم راتلو له دې ځای نه ددې برطانوي جاسوس سره دده اندیوالي شروع شوه بیا د هغې نه بعد په مرور د وخت سره دده پلار چې کله وفات کیږي خو دې خت کې محمد دې ته اماده کړې وه چې ډیرو علماء ته به یې کافر ویلي ځای پر ځای پرچار شروع کړې وه نو پلار یې دومره له ده نه تنګ شو چې دا نجد یې پریښودلو او هغه بلې مدرسې ته سرحد اتو د شام ته لاړلو .

په دې آخري ورځو کې شیخ زین د حلان ۱۲۰ کاله وړاندې د مکي مکرمې خطیب وه هغه په تاریخ مکه کې دا اشاره کړې ده چې هغه رسائل ما پیدا کړي دي چې کوم په مرض موت آخري وخت کې دې عبدالوهاب د خپل ځوي په رد باندې لیکلي دي هغه بیا یو څو پاڼې ولیکلي عربو ته چې زه ضعیف یمه او درنه څمه خو زما دا ځوي ګمراه دي ډِه پسې لاړ نه شي او زما له وجې نه دده اتباع څوک ونه کړي .

نو هغه پاڼو ته د حلان اشاره کړې ده بیا یې پلار وفات شو او د هغه پلار د نوم او مدرسې نه محمد استفاده وکړه او څه رسائل یې ولیکل په مشوره د عثمان باندې او په هغې کې ډیرو زیاتو خلکو ته د کفر نسبتونه وه په مرور د وخت سره دوي دا کوشش شروع کړو چې دوي د سعودي بادشاه ابي سعود نومیده چې له ده سره دا عثمان ملاقات وکړي په واسطه د محمد باندې او د سعودي بادشاهي په برطانیه خرڅه شي خو له دغه وخت سره د عثماني خلافت ډیر نوم او زور وه .

دا کارونه به ډېر مخفي کیدل کفارو ته به ښکاره چا لاس نه شو ور کولی او په ټوله دنیا کې د مسلمانانو نوم وه برطانیه او نور کفار په ډار کې وه دا روم چې یادیږي سپین داد مسلمانانو دار الخلافة وه.

اروپا ټوله په لاس د مسلمانانو فتحه شوې وه لږ څه پاتې وه نو دې چې راغې دد غلته اوله کاروایي دا وکړه چې په ریاض کې د زید ابن الخطاب د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورور وه د هغه د قبر په سر ګنبط وه نو دې عثمان ته محمد وویل چې زه دا ګنبط ورانوم هغه ورته وویل چې د وخت ګورنر به دې مخالف شي دا زما او ستا تحریک پټ روان دي دا مه کوه وایي نه د شپې کولنګ او بیلچه را واخیستله.

نو د زید بن خطاب دا قبر یې وران کړو چې دا یې وران کړو ګورنر ته اطلاع لاړه جلب پسې خپور شو چې محمد ونیسي محمد سره د عثمان وتښتید ه مدینې منورې ته لاړل دد ې مینځ کې تقریباً ۱۸۰۰ کلو میټره فاصله ده ، مدینې منورې ته چې لاړ هلته وه نو هلته خلکو روضه کې سلام کولو نو محمد عثمان ته وویل چې دا خلک څه کوي هغه ورته وویل چې تاسو شیخ یاستي عالم یاستي ستا خیال څه دي چې دا خلک څه کوي ؟ هغه ورته وویل :

﴿إِنَّ هَٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ سورة اعراف آیت : ۱۳۹.

هغه د موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ چې :

﴿فَأَتَوْا عَلَىٰ قَوْمٍ يَعْكُفُونَ عَلَىٰ أَصْنَامٍ لَّهُمْ﴾.

العیاذ بالله د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ روضې نه یې هغه بوت دغویې جوړ کړو او دا زائرینو ته یې د هغه مشرکینو نسبت وکړو.

﴿إِنَّ هَٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾

بیا دلته ددوي له ابي سعود سره ملاقات وشو چې ملاقات وشو نو په دغه ملاقات مخفي کې چې دري کسیز ملاقات وه ابي سعود یې خپل نظر ته واړوه دا ضرور نه ده چې خامخا به ددوي عقیدې ته اوښتې وي خو هغه د عثمان په لاس چې څه مواد د برطانیه وه هغه خبره سره وشوله.

ددوي تاریخ زه تاسو ته دې ځای پورې بیانوم ددوي تاریخ د کتاب التوحید مقدمه د بدخشاني وهابي په فارسي کې لیکلي ده په هغې کې دا را اخلي چې د زید بن الخطاب قبر

يې له خاورو سره خاورې کړو .

اولين مجاهدات شيخ نجدي دا يې عنوان دي اول جهاد واي د شيخ نجدي څه وه وايي د زيد بن الخطاب قبر يې وران کړو لکه دا قصه ددوي په کتاب کې موجود ده بيا يې دا هم را اخيستي چې له ابي سعود سره ملاقات چې کيدلو نو دري په درې ملاقات وشو .

﴿إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ مُتَبَّرٞ مَّا هُمۡ فِيهِ وَبَٰطِلٞ مَّا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ﴾

دا دعوی ددوي کتاب کړې ده بدخشاني وهابي د شيخ نجدي حالات ذکر کړې دي په مقدمه د کتاب التوحيد کې دا خبره هم کوي چې کله ددوي له ابي سعود سره ملاقات وشو دوي ورته وويل چې مونږ تاته يو راز ښکاره کوو په دې شرط يې ښکاره کوو چې ته مونږ ته حلف قسم وکړه نو بيا به درته راز ښکاره کړو وايي ابي سعود ورته قسم وکړو نو بيا وايي دوي ورته راز ښکاره کړو او راز يې نور نه دي ويلي چې دا څه راز دي که دا راز د جاسوسي نه وي او سعودي ملک په برطانيه خرڅول نه وي او اسلامي دعوت وي نو اسلامي دعوت باندې څوک چا ته قسم ورکوي چې هلکه حال مه وايه قسم درکوم درته خو دا هغه څه پټ راز وه ددوي په مينځ کې چې عثمان راوړي وه ابي سعود يې پرې خرڅ کړو .

بيا په مرور د وخت سره د شيخ نجدي قضاء راغله دا بي سعود بادشاهي وه او علماء د اهلسنت يې په شهادت ورسول ددوي دا دوره څه کم دوه سوه (۲۰۰) کالو پورې وچليد له لکه علامه شامي چې ورته اشاره کوي تقريبا څه د پاسه زر (۱۰۰۰) سنې نه شروع شوه او ۱۲۳۳ سنې پورې بيا عثماني خلافت عراق ته امر وکړو چې ته پرې جنګ شروع کړه عراق يو څه جنګونه وکړل خو ناکام شو .

بيا دويم ځل مصر عراق او کويت دا درې شريک کړل سره دا علامه شامي چې اشاره کوي ورته په ۱۲۳۳ سنه کې پرې عساکر د مسلمينو کامياب شول نو دا عساکر د مصر عراق او کويت دي په قومنده د عثماني خلافت باندې بيا په دې وهابيانو جنګ شوې دي او حرمين يې ترې صفا کړي او خالي کړي دي بيا له دې نه وروسته تقريبا ۱۲۰ کاله د ترکانو خلافت راغې خلافت عثماني په سعودي باندې دا آبادي د حرمينو داد هغې آثار دي او په رياض کې زياته ابادي د ترکانو اوس هم ده ډير ترکان په عربو کې اوس هم ميشت دي .

رياض ته چې زه تللې وم زياتو خلکو به چې ما به خبرې ورسره کولې واي زه ترکي يمه

هلته پاتې شوې دي اوسه پورې شته دي نن نه اتيا (۸۰) کاله مخکې دا شاه عبد العزيز چې وه داد هغه ابي سعود لمسي وه او دا عبد الله بن باز چې وه د نجدي لمسي وه په تلويزون ددوي خطبه راځي د عرفات خطبې ته عبد العظيم بن عبد الله بن باز د عبد الله بن باز ځوي اوس راولي سپين ږيري دي په ستر ګو ړوند دي هغه راولي اکثر بيان ته نو تلويزون باندې اکثره همدغه عبد العظيم بن عبد الله بن باز آلُ شيخ داده سره چې راځي الُ شيخ نه مراد شيخ نجدي دي داد هغه شيخ اولاد دي .

برطانيه قانون دا ايښي دي چې غټه قرباني اسلامي ملکونو کې مونږ ته اولين ابوسعود کړې ده او په علماء کې غټه قرباني شيخ نجدي کړې ده په سعودي چې بادشاه راځي دا به د ابوسعود له اولاد نه وي نو داد شاه عبد العزيز خاندان داد ابوسعود اولاد دي دا سعودي هم ددوي په نوم يادېږي هغې نه مخکې به دې ته جزيرة العرب ويل کيدله .

او دا کوم چې قاضي القضاة يې د شيخ نجدي له اولاد نه راځي دا سلسله په دغه شکل اوس هم جاري ده نو اتيا (۸۰) کاله وړاندې دا شاه عبد العزيز چې ده دا په کويت کې وه سعودي نه تښتيدلي وه او له ده سره ډيره ډاکوان وه غلاګاني به يې کولې چې کله عثماني خلافت په کمزوري کيدو شو برطانويانو بيا د هغه ابي سعود لمسي عبد العزيز ته لاس ورکړو او هغه ته يې وويل چې راځه د ډاکو پر ځای جهاد شروع کړه .

د ترکانو په خلاف يې را پورته کړو ۲۳ کاله بيا شاه عبد العزيز ترکانو سره جنګ کړې دي داد سعودي د ۱۱ جماعت کې د تاريخ چې کوم سبق ويل کيږي په مکتبونو سکولونو کې هغې کې شته ما له ځان سره دا تاريخ راوړې دي ددوي د تاريخ قيصه در ته شروع کومه چې دوي خپلو طالبانو اوسکوليانو ته کوم تاريخ وايي نو دوي تاريخ د محمد مصطفی ﷺ نه بيا نوي بلکې تاريخ د شاه عبد العزيز بيانوي ورته هلته په تاريخ کې دا را اخلي او په هغې کې راځي فتحه مکه فتحه مدينه فتحه د طائف دا چې دوي کوم جنګونه له ترکانو سره کړې دي او مکه يې فتحه کړي مدينه او طائف يې فتحه کړي هغه ددوي غزوات دي نو هغه ما ټول مطالعه کړو اول نه تر آخره پورې .

خو نچوړ دادی چې دوي ۲۳ کاله بيا جنګ کړې دي کله يې چې رياض ونيوه او حرمين د ترکانو په لاس کې وه نو ۱۳ کاله بيا هم جنګ پاتې شو سرحداتو کې جنګ وه حرمين له

ترکانو سره وه او نور د شاه عبد العزیز تر واک لاندې وه نو بیا هغه وه چې ترکان آخر مات شول په کوشش د برطانیه باندې او دوی په دغه علاقو غالب شول نو دا دویمه دوره ده چې په حرمینو دوی بیا راغلي دي مخکني دوره یې څه کم دوه سوه (۲۰۰) کاله تیره کړې ده خو د هغې دوري او د اوسني دورې ترمینځ تقریباً ۱۲۰ کاله ترکانو حکومت کړې ده او د دوي هغه نظام یې ختم کړي .

شامي دغې ته اشاره کوي :

**حتی کسر الله تعالی شوکتهم وخرب بلادهم وظفر بهم عساکر المسلمین .**

داد مصر او عراق مسلمانان دي .

**عام ثلاث وثلاثین ومائتین والف .**

بیا وروسته ذکر کوي .

**وحکم الخوارج عند جمهور الفقهاء والمحدثین حکم البغاة وذهب بعض المحدثین الی کفرهم .** بعضې مخدثین ورته کافر وایي .

اکثر محدثین وایي چې جهاد پرې هله کیږي چې دوي د بادشاه مقابله کې ودریږي نو بیا یې حکم د بغاتو دې وژلې شي او که مقابلې ته پورته شوې نه وي بیا یې حکم د قتل نه دي داد احنافو نه وه کوم عبارت چې ما تاسو ته د شامي ذکر کړو .

زمونږ ډیر احناف ورونه ما ته متشدد وایي زما څه تشدد دي زه خو هره خبره الحمد لله دلیل سره کومه زه خو ناقل د عباراتو یمه مانه څه تشدد شوې دي بس یا کتابونه نه کتل دي یا یې د ایمان کمزوري ده ماته متشدد وایي .

د نمک منډي یو شیخ ته ورغلم څه مسئله وه زه یې نه پیژندلم ما سره یو طالب هم وه هغه راته وویل چې ځان ورته مه ښایه ما ورته وویل صحیح ده زما خپل څه ضرورت وه یوه فقهي جزي مسئله وه چې کیناستلو وایي ستا نوم څه دي زړه کې مې وویل څه اوس به دروغ ورته وایي خپل نوم مې ورته واخیستنو بیا یې ښه په عزت کینولم .

وایي چا راته ویلي دي چې ډیر متشدد یې ما ورته وویل چې کیسټ دي اوریدلي که چا درته ویلي دي وایي نه طالبانو راته حکایت کړې دي ما ورته وویل چې طالبان د نن

زماني خو حاشيو ته ناست وي په هر متن حاشيه لګوي ما ورته وويل چې دا خو اوزګار دي که کيسې دې اوريدلې وي صحيح ده وايي نه طالبانو نه جنګي چرګان مه جوړوي او دا ښه کار نه دي بس زه غلي شومه او خپله مسئله مې ترې حل کړه .

نو له ده سره مکتبه کې شامي پرته وه ما ورته وويل شيخ صاحب دا شامي زمونږ فقه حنفي کې څنګه کتاب دی وايي چې دا خو ډير ښه مضبوط کتاب دي ما وويل څه تفردات کمزورې خبرې لري وايي نه نه چې مفتي وي او شامي نه لري فتوی دې وايي پريږدي سخت صفت يې د شامي شروع کړه .

دده خو اوس هغه خبره له ياده وتلې وه چې ما خو ده ته يوه خبره کړې وه ما ورته وويل چې علامه شامي ۳ جلد کې يوه خبره کړې ده د محمد بن عبد الوهاب نجدي دا عبارت مې ورته ذکر کړو چې دا خوارج دي او د خوارجو باره کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي :

لئن أدركتهم لأقتلنهم قتل عاد .

که ما را لاندې کړه دا زمانه زه يې د عاديانو غوندې وژنم .

بس ده سره نوره بله خبره نه وه ما ته وايي وايي چې ته د خوارجو مقابله کوي تا نه خو غټ مجاهد بل نشته ذي ، بيا يې ما ته وويل چې تر ډير وخته زما شک وه چې دا به خوارج نه وي نو د هغه شيخ صاحب دې يوسف آباد کې د رستمي سره خوا کې مسجد دي وايي دلته د محرم ۱۰ ورځې شيعه ګان چې کومې کارنامې د حسنينو بيانوي وايي دلته ۱۰ ورځې رستمي په حجرو کې د يزيد کارنامې بيانوي وايي ما ته يې څو ځل دعوتونه راکړه زه ورنغلم .

وايي يو ځل مې طالب وليږلو چې راغې هغه وويل چې ټول بيان د يزيد په صفاتو کيدلو وايي زه يقين ته ورسيد لمه چې وهابيان خوارج دي .

د نمک منډي شيخ صاحب دا خبره ما ته وکړه وايي دا خو همغه يزيديان دي بيا يې ما ته د علامه سندي عبارت وويل ما خو ليدلې وه وايي دا خو د ديوبند علماء هم دا رايه لري حاشيه د نسائي کې علامه سندي وايي چې :

لئن ادركتهم لأقتلنهم قتل عاد .

ددې له پاسه ليکي هغه حاشيه کې چې متبعين د محمد بن عبد الوهاب نجدي چې مسمی دي په وهابيانو سره غير مقلدينو باندې .

هم فرقة من الخوارج . داد خوارجو يو جماعت دي دا خو د احنافو نه ده .
د ديوبند له علماء په عقائد و علماء ديوبند کې استفتاء ترې شوې د وهابيانو متعلق هغوي دا ويلي :

نحن نفتي في حقهم بما افتى به الشامي .
زمونږ د وهابيانو متعلق دا فتوی ده چې کومه شامي ورکړې ده او شامي خو ورته خوارج ويلي دي .
تفسير صاوي د شوافعو نه دي د سورة فاطر په دې ايات باندې :
﴿إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ﴾ .
دې حزب باندې وايي چې د شيطان حزب وهابيان دي عبارت ته گوري :
وفي هذه الايات نزلت في الخوارج الذين يحرفون تأويل الكتاب والسنة ويستحلون بذلك دماء المسلمين وأموالهم .
د مسلمانانو وينې پر حلالي گڼي .
كما هو مشاهد الآن في نظائرهم . لکه دا خبره ښکاره ده نن وخت کې په امثالو د خوارجو کې .

وهم فرقة . چې دا يوه ډله ده .
بأرض الحجاز . د عربو په علاقه .
يقال لهم الوهابية . چې وهابيان ورته وايي .
يحسبون . دوي گمان کوي .
أنهم على شيء . چې دوي په څه دين باندې دي .
ألا انهم هم الكاذبون . دروغجن دي .
استحوذ عليهم الشيطان . شيطان پرې غلبه حاصله کړې .
فانساهم ذكر الله . د خدای ذکر يې ترې له ياده ويستلې .

اولئك حزب الشيطان الا ان حزب الشيطان هم الخاسرون نسأل الله الكريم ان يقطع دابرهم.

د خدای نه دعاء غواړو چې خدای دې بيخ کندي وکړي دابر دي خدای ورختم کړي.

دا تفسير الصاوي د جلالين حاشيه ده هغه اسم ددوي اخلي باقي پخواني ډله نه ده خوارج پخواني ډله ده هر کتاب پرې رد کوي او وهابيان نوي راوتلي خلک دي دې وختو کې تفاسير هم چا نه دي ليکلي او د فقه نوي کتابونه هم چا نه دي ليکلي تصانيف هم کم دي دا څه ناڅه چې شته دي او دوي نه وروسته ليکلي شوې دي هغوي پرې رد کړې دي لکه علامه شامي کړې دي علامه سندي کړې دي ديوبند علماء پرې کړې دي ، علامه صاوي پرې کړې دي که دا داسې پخواني جماعت واي نو هريو به ددوي نوم اخيستي.

وايي چې دا خوارج دي او په خوراجو کې فلاني جماعت دي سنن الترمذي جلد ۵ صفحه ۲۲۶ ددې لپاره درته څه احاديث ذکر کوم چې څه ناڅه نفرت به له خوارجو نه زړونو کې لري خو دا نفرت دې خدای ستاسې زړونو کې دومره زيات کړي لکه څومره چې زما دې چې سم مو بدي راشي ددې لپاره مې دا حديث را اخيستي دي.

حماد بن سلمة عن ابي غالب نه روايت کوي :

قال رأى أبو أمامة رءوسًا منصوبة على درج مسجد دمشق . مجاهدينو په خوارجو جهاد کړې وه اويا (۷۰) علماء ددوي حلال کړې وه تنې يې ورته دشته کې پريښې وي او سرونه يې ترې راوړل د دمشق او حلب ښار په غټ ديوال يې کيښودل د عبرة لپاره چې ټول خلک يې وګوري چې بيا څوک خارجي نه شي نو دلته ابو امامة رضي الله عنه رابهر شو چې ګوري دلته دا سرونه دي ددې اويا (۷۰) سرونو باره کې په کتاب الخوارج کې مصنف ابن ابي شيبه وايي چې اكلت السجود جباههم ددې اويا واړو تندي وايي سجدو خوړلي وه يعنې د سجدو ټاپي په کې وي تور ټاکي يې لرل هلته سرونه پراته دي.

فقال أبو أمامة كلاب النار . دا سپي د جهنم دي.

شر قتلى تحت أديم السماء خير قتلى من قتلوه . هغه چې دوي يې مره کړي وه هغوي وژل شوې دي هغه غوره د قتلي وو دي.

د خوارجو مقابله کې څوک شهید شي او بل د مشرک مقابله کې شهید شي او د ستاسو خو دا ګمان دي چې د کافر مقابله کې شهید شي د هغه به اجر اوچت وي په مجمع الزوائد کې د حضرت کعب رضي الله عنه حدیث دي هغه وایي :

ان لقتیل الخوارج فضل ثمانیة انوارٍ علی قتیل المشرکین .

که سړي د خوارجو د لاسه شهید شي دده اجر رنړا او نور په اته چنده زیات وي د هغه شهید نه چې کوم د مشرک مقابله کې شهید شوي دغه وجه ده زمونږ خلفاء ټول خوارجو شهیدان کړي دي بغیر د صدیق اکبر رضي الله عنه چې هغه د پاره شهادت د محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم ورکړې شو چې اثر د زهرو د خیبر وه او له ده نه سوا د حضرت عمر رضي الله عنه شهادت له خوارجو نه دي د حضرت عثمان رضي الله عنه شهادت له خوارجو نه دي د حضرت علي رضي الله عنه شهادت له خوارجو نه دي .

دې نه بعد تقریباً ۵۰۰ کاله مقابلې به داخل دوري اسلامي کې ټولې د خوارجو سره شوې دي د ایران کې به دا دلې ډیرې پیدا کیدلې د افغانستان په هرات کې ډیرې مقابلې د خوارجو سره شوې دي والي د خراسان کړې دي په امر د عباس کوم خلافت چې جوړ وه د هارون الرشید په زمانه کې .

نو ابو امامة رضي الله عنه چې دا خوارج ولیدل نو بیا یې ولوسته :

﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ﴾ یوه ورځ ده چې سپین به شي څه مخونه تور به شي څه مخونه .

الی آخر الأیة قلت لأبي أمامة انت سمعته من رسول الله صلی الله علیه وسلم. دا تا اوریدلي د نبي علیه السلام نه .

هغه ورته فرمایي :

لو لم أسمعه الامرةً او مرتین او ثلاثاً او اربعاً حتی عد سبعا ماحدثتکموه .

که مې اوه ځل نه وای اوریدلې درته به مې نه وي بیان کړي یعنې دا مې اوه کرته اوریدلي دي .

سنن الکبری للبیهقي جلد ۸ صفحه ۱۸۸، المستدرک علی الصحیحن للحاکم مع

تعليقات الذهبي في التلخيص جلد ۲ صفحه ۱۶۳، المعجم الكبير للطبراني جلد ۷ صفحه ۳۰۶، المعجم الكبير للطبراني جلد ۷ صفحه ۳۱۳ دې تولو دغه روايت ذکر کړې دي.

دا روستني عبارت د معجم الكبير د طبراني جلد ۷ صفحه ۳۱۳:

قال سألت ابا غالب عن هذه الاية: ﴿هُوَ الَّذِي أَنزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُّحْكَمَاتٌ هُنَّ أُمُّ الْكِتَابِ وَأُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ﴾.

ما ورته وويل دا د چا باره کې نازل دي؛

حدثني أبو أمامة. وايي ماته هغه حديث بيان کړو.

عن رسول الله ﷺ قال هم الخوارج. دغه ايات د خوارجو باره کې دي.

وسألته عن هذه الاية: ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ﴾ سورة آل عمران آيت: ۱۰۶.

دا چې مخونه يې توربړي دا څوک دي.

فقال حدثني ابو امامة عن رسول الله ﷺ انهم الخوارج. دا هم خوارج دي.

دارنګې نوادر الاصول في احاديث الرسول جلد ۱ صفحه ۲۲۱:

عن ابي عاكف كنت بدمشق فجيء برؤوس الخوارج من العراق.

ابي عاكف وايي چې زه وم په دمشق کې چې راوړلې شو رؤوس د خوارجو.

فنصبت على درجة المسجد فبينا أنا قائم اذا انا بشيخ على حمار قصير ينظر اليهم ويبكي.

زه ولاړ يمه چې يو سړي دې په خره سپور دي او بره ګوري دې سرونو ته او ژاړي.

ويقول. او وايي.

كلاب النار كلاب النار. د جهنم سپي دي.

فسألت عنه. ما تپوس وکړو چا نه چې دا سړي څوک دي.

فقالوا أبو امامة صاحب رسول الله ﷺ. دا ابو امامة دي.

فدنوت منه . زه ورنزدې شوم .

فقلت يا ابا امامة أراك تبكي وتقول كلاب النار .

کورم تاته چې ژاړې او بيا وايې چې د جهنم سپي دي نو چې د جهنم سپي دي نو ژاړې ولې .

قال رحمة لهم . ابو امامة رضي الله عنه وويل هسې مې پرې شفقت راغې .

لانهم قد صلوا و صاموا وحجوا واعتمروا ثم صاروا كلاب النار .

ځکه دوي مونځونه کړي وه روژې نيولې وې حجونه يې کړې وه عمرې کړې وې او بيا د جهنم سپي هم وګرځيدل .

قلت هذا شيء تقوله ام سمعته من رسول الله صلى الله عليه وسلم .

دا خپله خبره کوې او که دې اوريدلې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه .

قال لو لم اسمعه الا مرة او مرتين او ثلاثة او اربعة حتى بلغ عشر مرات ما قلت . که مې لس ځل نه واې اوريدلې نه به مې وه بيان کړې .

ولكن سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول انه سيكون من امتي قوم يقرأون القرآن لاتجاوز قراءتهم تراقيهم .

امت کې به مې يو قوم وي قران کريم به وايي له ستونې نه بښکته به يې نه کوزيږي .

يعبدون الله تعالى عبادة . د خداي تعالى به داسې عبادت کوي .

يحتقرون عبادة الناس في عبادتهم . د خلکو عبادت به د هغوي په مخکې سپک ښکاري .

يمرقون من الدين كما يمرق السهم من الرمية لا يعود فيه حتى يعود اعلاه فوقه هم شر الخلق والخليقة هم شر قتلى تحت اديم السماء طوبى لمن قتلهم او قتلوه .

خوشحالي ده هغه چا لره چې دوي مړه کړي او يا د دوي له لاسه شهيد شي .

دارنګې مسند احمد بن حنبل جلد ۴ صفحه ۳۵۵ :

فدلوت منه . زه ورنژدې شوم .

فقلت يا ابا امامة أراك تبكي وتقول كلاب النار .

ګورم تا ته چې ژاړې او بیا وایي چې د جهنم سپي دي نو چې د جهنم سپي دي نو ژاړې ولې .

قال رحمة لهم . ابو امامة رضي الله عنه وویل هسې مې پرې شفقت راغې .

لانهم قد صلوا و صاموا وحجوا واعتمروا ثم صاروا كلاب النار .

ځکه دوي مونځونه کړي وه روژې نیولې وې حجونه یې کړې وه عمري کړې وې او بیا د جهنم سپې هم وګرځیدل .

قلت هذا شيء تقوله ام سمعته من رسول الله صلى الله عليه وسلم .

دا خپله خبره کوې او که دې اوریدلي د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه .

قال لو لم اسمعه الا مرة او مرتين او ثلاثة او اربعة حتى بلغ عشر مرات ما قلت . که مې لس ځل نه واې اوریدلي نه به مې وه بیان کړي .

ولكن سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول انه سيكون من امتي قوم يقرأون القرآن لاتجاوز قراءتهم تراقيهم .

امت کې به مې یو قوم وي قران کریم به وایي له ستوني نه ښکته به یې نه کوزیږي .

يعبدون الله تعالى عبادة . د خدای تعالی به داسې عبادت کوي .

يحتقرون عبادة الناس في عبادتهم . د خلکو عبادت به د هغوي په مخکې سپک ښکاري .

يمرقون من الدين كما يمرق السهم من الرمية لا يعود فيه حتى يعود اعلاه فوقه هم شر الخلق والخليقة هم شر قتلى تحت اديم السماء طوبى لمن قتلهم او قتلوه .

خوشحالي ده هغه چا لره چې دوي مړه کړي او یا د دوي له لاسه شهید شي .

دارنګې مسند احمد بن حنبل جلد ۴ صفحه ۳۵۵ :

حدثنا عبدالله حدثني ابي حدثنا اسحاق بن يوسف عن الاعمش عن بن ابي أوفى قال سمعت
سول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول الخوارج هم كلاب النار.
داد جهنم سپي دي دا اوله فرقه حروريه د خوارجو وه او د هغې په ذم کې چند روايات
ه.

دولس (۱۲) ډلې دي.

فاولهم الازرقية. اول ترې ازرقيه ده دې ته ازارقه وايي.

التبصير في الدين جلد ۱ صفحه ۴۹:

منهم الازارقة وهم اتباع رجل منهم يقال له أبو راشد نافع بن الازرق الحنفي.

ازارقه ورته ځکه وايي چې داد نافع بن ازرق الحنفي تابعدار وه لکه وهابيان د محمد بن عبدالوهاب نو په کار خو دا نه وه چې وهابيان ورته ويلي شي خو معروفه شوه د هغه محمد پلار ته منسوب شول، د غه شان دلته هم دي ددوي اصل امير نافع دي خو د نافع پلار ازرق نوميږي.

ولم يكن للخوارج قوم اكثر منهم عددا واشد منهم شوكة.

خوارجو کې له دې نه غټه ډله د چا نه وه او زيات طاقت هم د چا نه وه ددوي عقيده دا ده:

قالوا لا نعلم احدا مؤمنا وكفروا اهل القبلة الا من دان بقولهم.

ددوي قول به چې چا منلو هغه مسلم وه او دې نه اخوا ته ټولو ته يې کافر ويلې، احاديثو کې دوي باندې رد راغلې دي.

المعجم الكبير جلد ۷ صفحه ۳۱۷ هغه مخکې چې حديث کې تير شول چې د دمشق مسجد ته چې کوم سرونه راوړل شول نو هغه د ازارقه خوارجو ول، ابو غالب وايي:

جاءت رؤوس الازارقة سبعين رأسا فأقيموا على درج دمشق سبعة ايام فمضت ثلاثة ايام من السبعة.

اعلان دا شوي وه چې دا به اوه (۷) ورځې پراته وي.

وكان اليوم الرابع. څلورمه ورځ وه.

فجاء أبو أمامة فركع ركعتين عند سارية، وقال كلاب النار ثلاثاً شر قتلى تحت ظل السماء.

دا رنګې مسند احمد بن حنبل جلد ۴ صفحه ۳۸۲ سعيد بن جمهان وايي عبدالله بن ابي اوفى ته راغلمه.

محجوب البصر. ضعيف شوې وه نظر د هغه.

فسلمت عليه قال لي من انت فقلت انا سعيد بن جمهان قال فما فعل والدك.

پلار دې څنګه دې.

قال قلت قتلته الازارقة. هغه خو خوارجو کې ازارقه وو شهيد کړې دې.

قال لعن الله الازارقة لعن الله الازارقة حدثنا رسول الله صلى الله عليه وسلم انهم كلاب النار قال قلت الازارقة وحدهم ام الخوارج كلها.

ټول دې که يواځې ازارقه دې.

قال بل الخوارج كلها قال قلت فان السلطان يظلم الناس ويفعل بهم.

دا بادشاه کله ظالم وي نو څنګه به يې کوي د هغه مقابله کې به نه پاځيږي.

قال فتناول يدي فغمزها بيده غمزة شديدة.

زما دا لاس يې ونيوه زور يې ور کړو.

ثم قال ويحك يا ابن جمهان عليك بالسواد الأعظم عليك بالسواد الأعظم.

بادشاه که ظالم هم دې خو دا ټول مسلمانان غلي دي دوي سره ملګري شه د هغه مقابله کې قيام مه کوه، شر مه جوړوه.

دويمه ډله الاباضية: وهم اتباع عبدالله بن اباض.

ګوره دا تابعدار د عبدالله دي خو پلار يې اباض نو ميږي نو اباضيه ورته وايي هغه پلار ته منسوب دي.

وهابيانو اوس دا خوره کړې ده چې مونږ ته وهابيان ځکه وايي چې منسوب دي دا وهاب د خداى صفت دي نو د خداى والا خلک دي نو دوي د خداى والا نه د عبدالوهاب والا خلک دي خو کاشکي صحيح عبدالوهاب والا وي د هغه دځوي والا خلک دي خو په پلار

يې مشهور شوې دي .

اصل کې دا محمد چې د عبدالوهاب ځوي وه چا نه پيژنده محمد په عربو کې د عبدالوهاب په نوم مسمی شو پلار يې معروف انسان وه .

**ثم هم فيما بينهم فرق** . خپلو کې ډلې لري .

**وكلهم يقولون ان مخالفيهم من فرق هذه الأمة كفار لا مشركون ولا مؤمنون ويجوزون شهادتهم** .

له ازارقه وو نه لرې بنه دي ازارقه د عامو مسلمانانو شهادت هم نه قبلوي وايي دا مشركين دي .

**ويحرمون دماءهم في السر** . او خپلو کې چې ناست وي سره وايي چې وينه تويول يې حرام دي .

**ويستبيحونها في العلانية** . چې جنګ يې راشي بيا يې وژني .

**ويجوزون مناكحتهم** . او د اهلسنت سره نکاح روا ګڼي هغه ازارقه دا هم روا نه ګڼي دويم قول علامه قرطبي ذکر کوي چې اباضية دا وه .

**قالوا من اخذ بقولنا فهو مؤمن ومن اعرض عنه فهو منافق** .

دا اباضيه نن صبا چې دي د مسقط عمان قاضي القضاة اباضي دي او هلته د جامع مسجد امامان ټول اباضيان دي دا اباضيه هلته معروفه ډله ده زه چې کله نوي مسقط ته لاړم نو هغه خلکو ما ته وويل دلته څه خلک دي اباضيان ورته وايي زما خيال ته دا راغله ما وويل دا به بازيان وي عبدالله بن باز ما وويل دا به ده ته منسوب وي .

قابوس د هغوي بادشاه دي د عمان دا اوسني تقريباً ۲۸ کاله کيږي خپل پلار يې قتل کړې د هغه په ځای ناست دي او خپل ځامن يې چې کله زلمي شي نو برطانيه ته يې وليږي بيا پرې په رسمي طريقې سره د مسقط ويزه بنده کړې وای دا بيا ما وژني نو ځامن خپل ملک کې نه پرېږدي ټول په لندن کې دي نو دا بادشاه هم ډير سخت اباضي دي هلته په هره ښاريه کې يو غټ مسجد جوړ وي هغې ته مسجد قابوس وايي تاريخي مسجد وي په هره ښاريه کې يو جوړ کړې وي په عربو کې د مسجد نبوي او د حرم د مکي مکرمې نه غير هغه خو جدا

دي نور په عربو کې یا په بل ملک کې داسې مساجد چا نه دي جوړ کړي لکه قابوس چې جوړ کړې او ډیرې خرچې پرې کړي تقریباً هر مسجد په دیرش جریبه کې جوړوي او ګټه مکتبه هم په کې وي او ۱۵ علماء وي هغوي ته تنخوا هم ورکوي.

نو زه لاړم مکتبي ته چې ننوتم یو غټ کتاب مې په نظر راغې ۲ جلد تاریخ الاباضیة چې هغه مې راواخیسته چې مطالعه مې کړو نو راته معلومه شوه چې دا خو بازیان نه دي اباضیان دي.

هلته چې زمونږ څه خلک دي هغوي خو نه پوهیږي هغوي ما ته وویل دلته څه خلک دي بازیان ورته وایي چې دوي پسې مونځ کیږي که نه کیږي نو بیا چې ما تحقیق وکړو نو دا اباضیان وه او دا خپل تاریخ یې ټول راخیستي وه چې کوم علماء محدثین دوي کې تیر شوې وه باقاعده د هغوي تاریخونه یې ذکر کړې وه او ددوي أمراو چې کوم جنګونه کړې وه هغه د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمانې نه واخله تر اوسه پورې مستقل تاریخ په کې پروت وه.

بیا مې یوه رساله پیدا کړه په عربو کې چې عبد الله بن باز د مسقط په قاضي القضاة چې اباضي دي په کفر باندې لیکلي وه چې دا کافر دي یوه غټه رساله یې لیکلې چې اباضیان کافر دي خو ستاد سعودي وهابیانو خوارجو نه بیا دا بنه دي ما ذواړه لیدلي دي اباضیان متدین دي د هغوي په نسبت شیخان دي نوافل کوي د ماښام نه بعد د ماز دیګر نه وروسته ناست وي تسبیحات وایي.

داسې دي لکه د وهابیانو صوفیه چې وي تر ډیره وخته چې ماته معلومه نه وه ما ورباندې د صوفیه وګمان کوه ما وویل چې دا به کومه سلسله کې داخل وي د هر مانځه نه وروسته ډیر طولاني اذکار کوي اوراد وایي.

(۳) دریم جماعت والثعلبیة. قالوا. هغوي وایي:

ان الله عز وجل لم یقض ولم یقدر. الله تعالی نه څه فیصلې کړي او نه یې تقدیر جوړ کړي.

(۴) څلورم: الخازمیة. التبصیر في الدین جلد ۱ صفحه ۵۵:

فمنهم الخازمیة وهم الاکثرون. دا ډیر زیات دي.

منهم واتفقوا اهل السنة في القدر والاستطاعة والمشيئة . دوي موافقت د اهل سنت لري .

في القدر والاستطاعة والمشيئة .

فيقولون لا خالق الا الله ولا يكون الا ما يريد والاستطاعة مع الفعل ويقولون بتكفير القدرية بهذه المسائل التي ذكرناها .

ليكن فساد دوي کې داده :

ولكن يكفرون عثمان وعلياً والحكمين وقالوا لا ندري ما الايمان والخلق كلهم معذورون .

پنځم جماعت : الخلفية الفرق بين الفرق جلد ۱ صفحه ۲۵ د دوي تسميه را اخلي :

وهم الذين قاتلوا حمزة ابن أكرك الخارجي .

دا هغه خلک وه چې مخکې تير شو چې د هراة په علاقه يې جنګ وکړو او ۳۰۰۰۰ دېرش زره کسان په کې مړه شول دا خلفيه وه زما په ګمان دا خلفيه چې دي دوي ته اوس سلفيه وايي دا نوم يې ورته ألته کړو ځکه بعضې رايو کې سره شريک دي .

قاتلوا حمزة ابن أكرك الخارجي في ارض كرمان . دا اتباع د خلف وه خلف يو سړي وه .

ذكر الخلفية منهم هم أتباع خلف الذي قاتل حمزة الخارجي والخلفية لا يرون القتال الا مع امام منهم .

وايي جنګ به سره د امام نه کوي .

وقد كفوا أيديهم عن القتال . جنګونه يې بند کړي وه .

لفقدهم من يصلح للامامة منهم . وايي څوک سړي نشته چې د امامت قابل شي او جنګ د هغه رايه لاندې وشي .

وصارت الخلفية الى قول الازارقة في شيء واحد وهو دعواهم ان اطفال مخالفيهم في النار .

ازارقه وو به هم دا خبره کوله چې دا مشران خو يې جهنميان دي خو دا واړه ماشومان د اهل سنت هم کافر دي دا هم جهنميان دي نو دې وايي چې دې خبره کې خلفية قول د ازارقه وو ته ذهاب کړي .

وزعموا ان من ترك الجهاد من ذكر او انثى كفر .
گمان کوي چې تارک د جهاد کافر دي دا غلاط خوارج اوس هم دې عقيدې ته رسيدلي دي چې ډير غټ غټ محدثين او مشائخ دي هغوي ته ډير بد نسبتونه کوي .
(٦) شپږم جماعت : الكوزية . قالوا ليس لأحد أن يمس أحداً . يو سړي بل نه شي مسحه کولې .
لانه لا يعرف الطاهر من النجس ولا ان يؤاكله حتى يتوب او يغتسل .
(٧) جماعت الكنزية : قالوا لا يسع احدا ان يعطي ماله احدا لانه ربما لم يكن مستحقاً بل يكنزه في الأرض حتى يظهر اهل الحق .
وايي جائز نه دي چې يو سړي بل ته مال ورکړي وايي مستحق نشته بلکې ځمکه کې به يې خزانه کړي حتى يظهر اهل الحق .
(٨) جماعت : الشمراخية . قالوا : لا بأس بمس النساء الاجانب . پردي جينکي مسه کول څه باک نه لري .
لانهن رياحين . دوي کشمالي دي بويه وه يې .
(٩) جماعت : والأخنسية : جزء حديثي في احاديث ذكر الخوارج جلد ١ صفحه ١٠٣:
اخنسية اصحاب اخنس بن قيس وهم يتبرؤون من كل من لا يوافقهم ولا يسكن في بلاد مخالفهم . څوک چې ورسره موافق نه دي هغوي نه بيزار دي د هغوي په ملک کې اوسيدل روا نه ګني بل يې دا عقيده ده .
قالوا لا يلحق الميت بعد موته خير ولا شر . مړي پسې له مرګ نه وروسته نه خير رسي او نه شر د ايصال ثواب منکر دي .
(١٠) جماعت والحكمية : قالوا من حاكم الى مخلوق فهو كافر . مخلوق ته فيصله چاپوره وايي دا کافر دي .
دا اوسني وهابيان او جماعة المسلمين دا د خوارجو په حکميه کې راغلي دي دوي بار بار هر ځای کې د دې پرچار کوي چې مخلوق ته فيصله وړل کفر دي دا چې کوم ائمه مونږ

حاكمان گرځولي په فيصلو د دين کې او تقليد ته شرک وايي بنيادي خبره ددوي هغه اصل د خوارجو دي چې لاحاكم الا لله، د الله نه سوا بل حاکم نشته دي او د بل چا فيصله کول اوريدل منل دا کفر او شرک دي داد حکميه فرقې عقيده ده.

(۱۱) جماعة د معتزله وو دي دا معتزله د قدريه وو نه هم دي او د خوارجو نه هم دي دا دوه جماعته دي : قالوا اشتبه علينا امر علي ومعاوية فنحن نتبرأ من الفريقين.

دواړو نه مونږ بيزاريو پاکستان کې مودوديان په دې نظر باندې دي دواړو پسې خبرې کوي او دواړو نه بيزاري ښکاره کوي چې دا اوله تفرقه امت کې وايي دوي جوړه کړې وه العياذ بالله.

(۱۲) جماعت والميمونية. التبصير في الدين جلد ۱ صفحه ۲۴ :

ومن جملة العجاردة فرقة يقال لهم الميمونية ولا يعدون من فرق المسلمين لانهم يجوزون التزوج ببنات البنات.

د لور لخوا لمسيي سره نکاح روا ګڼي.

ويبيحونه وذلك خلاف ما عليه المسلمون.

الفرق بين الفرق جلد ۱ صفحه ۲٦۴ الفصل السادس عشر من هذا الباب في ذكر الميمونية من الخوارج وبيان خروجهم عن فرق الاسلام هؤلاء اتباع رجل من الخوارج الشخرية كان اسمه ميمونا وكان على مذهب العجاردة من الخوارج وقالوا بتكفير علي وطلحة والزبير وعائشة وعثمان وقوله بتكفير اصحاب الذنوب وانه اباح نكاح بنات الاولاد من الاجداد وبنات اولاد الاخوة والاخوات.

خورزي او وريرې دا ټولې به يې روا ګڼلې دا ۱۲ فرقې د خوارجو وي.

## وانقسمت القدرية اثنتي عشرة فرقة :

قدريه ۱۲ فرقې دي.

مخکې له دې نه چې د دغو فرقو نومونه درته ذکر کړم او د هغوي د عقائدو ذکر درته وکړم څه احاديث د قدريه وو په ذم کې درته ذکر کوم چې نفرت مو سوا شي.

الابانة عن شريعة الفرقة الناجية ومجانبة الفِرَق المذمومة جلد ۲ صفحه ۱۰۳ داد کتاب نوم دي تاسو ته مخکې ترغيب دذې کتاب درکړي وه د حافظ ابن بطة حنبلي :

عن ابن عمر رضي الله عنه قال رسول الله صلى الله عليه وسلم سيكون في امتي مسخ .

زما امت کې به مسخه راشي د خلکو نه به خنزيران او شادوګان جوړ شي .

و ذلك في القدرية والزندقية . دا مسخه به په قدريه فرقي کې کيږي زنادقه دي .

دويم حديث :

عن ابن عباس قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اتقوا القدر فانه شعبة من النصرانية .

قدريه فرقي نه ځان وساتي دا يوه ډله د نصرانيانو ده .

دارنګې المعجم الكبير للطبراني جلد ۱۵ صفحه ۳۰ :

عن معاذ بن جبل رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ما بعث الله نبياً قط .

يو پيغمبر خدای تعالی ليږلی نه دي .

إلا وفي أمته قدرية ومرجئة . مګر قدريه او مرجئه به لري .

يشوشون عليه أمر أمته . په دغه پيغمبر به يې هغه اتفاق د امت مشوش کړي وي او په دې امت کې به يې تشويشونه پيدا کړي وي .

الا وان الله عزوجل لعن القدرية والمرجئة على لسان سبعين نبياً .

خبردار خدای تعالی په لسان د (۷۰) پيغمبرانو باندې قدريه او مرجئه لعنتي کړي دي . اصول السنة لابن ابي زمنيني جلد ۱ صفحه ۲۹۷ کې زياتوي :

آخرهم محمد صلى الله عليه وسلم.

المعجم الاوسط جلد ۴ صفحه ۲۸۱ :

عن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم صنفان من امتي لا يردان عَلَيَّ الحوض .

دوه ډلې دي زما امت کې ما ته په حوض ته ورود نه کوي .

ولا يدخلان الجنة . او جنت ته به هم لاړ نه شي .

القدرية والمرجئة .

المعجم الاوسط جلد ۴ صفحه ۲۸۱ :

عن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم القدرية والمرجئة مجوس هذه الامة

فان مرضوا . كه دوي مريضان شول .

فلا تعودوهم . بيمار پرسي يې مه كوي .

وان ماتوا . كه مړه شي .

فلا تشهدوهم . جنازې مونځ ته يې حاضري مه كوي .

السنة لابن ابي عاصم جلد ۱ صفحه ۱۴۷ :

عن عكرمة عن ابن عباس رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال صنفان من امتي ليس لهم في الآخرة نصيب القدرية والمرجئة :

التبصير في الدين جلد ۱ صفحه ۲۱ په دې كې د صحابه وو هغه روايات را اخلي :

وظهر في ايام المتأخرين من الصحابة خلاف القدرية .

دوي را پيدا شول .

وكانوا يخوضون في القدر والاستطاعة كمعبد الجهني وغيلان الدمشقي وجعد بن درهم وكان ينكر عليهم من كان قد بقي من الصحابة كعبدالله بن عمر وعبدالله بن عباس وعبدالله بن ابي أوفى وجابر وانس وابي هريرة وعقبة بن عامر الجهني وأقرانهم وكانوا يوصون الى أخلافهم .

دوي صحابه وو به خپلو وروستنو ته وصيتونه كول .

بأن لا يسلموا عليهم . چې په دې قدريه وو سلام مه اچوي .

ولا يعودوهم ان مرضوا . بيمار پرسي يې مه كوي .

ولا يصلوا عليهم اذا ماتوا . چې كله مړه شي جنازې پرې مه كوي .

ثم ظهر بعدهم في زمان الحسن البصري بالبصرة خلاف واصل ابن عطاء الغزال في القدر

وفي القول بمنزلة بين المنزلتين ووافقه عمرو بن عبيد فيما احدثه من البدعة فطردهم الحسن البصري من مجلسه .

ددې جماعت اول چې دي الاحمرية دي :

وهي التي زعمت ان في شرط العدل من الله ان يملك عباده امورهم .

خدای تعالى به هله عادل ثابت شي چې بنده ګانو ته پوره اختيار ورکړي په خلف کې پوره مالکان يې کړي .

(۲) ذله الثنوية : وهي التي زعمت ان الخير من الله والشر من الشيطان .

التبصير في الدين جلد ۱ صفحه ۹۰ :

ان المجوس والثنوية قالوا بخالقين اثنين . ثنويه فرقه ددوه خالقانو قائل وه يو وايي د خير او بل د شر شريې شيطان ته منسوبه وه .

(۳) المعتزلة وهم الذين قالوا بخلق القران وجحدوا صفات الربوبية .

(۴) والكيسانية : التبصير في الدين جلد ۱ صفحه ۳۰ :

وأما الكيسانية فهم اتباع مختار بن ابي عبيد الثقفي .

دا هغه وه چې بيا يې د پيغمبري دعوى کړې وه مختار الثقفي دا په زمانه د مصعب بن زبير رضي الله عنه کې چې کله په عراق ګورنر وه د عبد الله بن زبير رضي الله عنه ورور .

او دې وخت کې عبد الملک بن مروان چې معاوية رضي الله عنه د بنو اميه نه وفات شو ځوي يزيد يې له ځان نه اعلان وکړو هغه لږ وخت لپاره وه چې کله هغه مړ شو بيا مروان اعلان وکړو چې هغه مړ شو عبد الملک بن مروان شو بيا د هغه نه بعد د هغه ځامن راغلل ددې مروان دوه ځامن وه چې يو عبد العزيز وه بل عبد الملک وه ددې عبد العزيز ځوي چې وه عمر بن عبد العزيز وه هغه ته بيا اومه (۷) رتبه کې بنو اميه وو کې امارت ورسيدلو نو يو په کې عادل راغلې دي .

معاويه رضي الله عنه نه ديخوا ته ۱۰ امراء ددوي راغلي دي ټول ظلمه دي يو د بل نه بانديدي سواد عمر بن عبد العزيز نه چې هغه ټول امت په عدالت باندې پيژني او ثاني عمر لقب ورکوي نو دې بنو اميه وو بيا ډير ظلمونه کړې دي ددوي د ظلم عظيمه انتهاء دا وه چې

په ټولو منابرو د مسلمینو باندې د جمعې په دویمه خطبه کې اهل بیت او حضرت علي رضي الله عنه ته سب او کنځل کیدل دا په هر امام لازم وه چې چا به دا نه کول هغه امام یې حلالوه بیا به یې وویل چې ته د هغوي ملګرې یې او زمونږ مخالف یې خو دومره وه چې بنو عباس اهل بیت چې وه نو دا یې وژل نه خو محبوس کړي وه.

ددوي د کور جیني به چې چیرته واده شوله نو دوي به نظر لاندې ساتله هغه به یې ډیره محبوسه ساتله چې دا چیرته بچي یې بیا تحریک جوړ نه کړي ډیره زیاته پابندي کې به یې ساتله بیا دې کې ولید بن عبد الملک راغې سلیمان بن عبد الملک راغي دا سلسله روانه وه بیا عمر بن عبد العزیز راغي آخري د بنو امیه وو نه بیا مروان حمار راغي دا ډیر ظالم وه د هغه پسې بیا د بنو عباسو نه یو کس د اهل بیتو نه چې عمر یې کم وه کشر وه خو ډیر بد معاش وه او ډیر ظالم هم وه هغه د بنو أمیه وو په خلاف پاڅون وکړو او خلک هم د بنو امیه وو نه ډیر تنګ شوي وه نو هغه چې پاڅیدلو خلکو پسې قیام وکړو یو دم د بنو أمیه وو دوره یې ختمه کړه بنو عباس پرې راغلل چې راغلل نو دغه اولین بادشاه د بنو عباسو اعلان وکړو چې د بنو امیه وو ځوانان خو مړه کړي وګوره که د دوه ورځو ماشوم وي هم یې قتل کړي او ښځي وینځي کړي.

او همداسې ورسره وکړه چې د بنو امیه وو د دوه ورځو ماشوم یې هم ژوندي پرې نه خودلو بس تکړه په بنو امیه وو کې هغه وه چې دا ملکونه یې پریښودل او لاړ ترې نه او یا یې انکار وکړو چې زه د بنو امیه وو نه یم نو سخت مرګ ورکې بنو عباس وکړو بیا دا بنو عباس تقریباً زیات او کم ۳۰۰ کاله چلیدلې دي.

نو مختار بن ابي عبید الثقفي چې وه هغه وخت کې رابهر شو چې کله عبد الله بن زبیر رضي الله عنه په حرمینو باندې د امارت اعلان کړې وه او عراق خراسان په افغانستان باندې مهلب بن ابي یوسف چې د خوارجو مقابله کې لوي مجاهد تیر شوې دي ده هم د عبد الله بن زبیر سره بیعت کړې وه.

او مصر هم د عبد الله بن زبیر سره بیعت کړې وه د یمن خلک هم د هغه په بیعت کې وه زیات بیعتونه له عبد الله بن زبیر سره شوې وه عبد الملک بن مروان سره صرف شام وه او دویمه رتبه کې په شام باندې زبردستي وکړه او له هغوي نه یې په زور بیعتونه واخیستل.

عراق هم د عبدالله بن زبير سره وه په دې باندې د مصعب بن زبير رضي الله عنه والي وه نو بيا عبدالله بن زبير رضي الله عنه دلته وه دچې مختار الثقفي پيدا شو د مختار الثقفي چې وه اول يې د مهديت دعوى وكړه وروسته بيا د نبوت دعوى وكړه بيا مصعب بن زبير دې په يو جنګ كې ونيولو پهانسي يې كړو مختار الثقفي نو دا هغې ته اشاره كوي.

**واما الكيسانية فهم اتباع مختار بن ابي عبيد الثقفي الذي كان قام يطلب ثأر الحسين بن علي بن ابي طالب.**

اول پاخون يې ددې لپاره كړې وه چې د حضرت حسين رضي الله عنه بدل دې واخيستل شي.

**وهم الذين قالوا لا ندري هذه الافعال من الله او من العباد ولا نعلم أيثاب الناس بعد او يعاقبون.**

(۵) دله د قدريه وو والشيطانية: دا دله الفرق بين الفرق جلد ۱ صفحه ۵۳ كې ذكر كوي:

**الشيطانية منهم هؤلاء اتباع محمد بن النعمان الرافضي الملقب بشيطان.**

ددوي د مشر شيطان لقب وه نو دوي ته يې شيطانية فرقه ويلي.

**قالوا ان الله تعالى لم يخلق الشيطان.** دوي به ويل خداى تعالى هر څه پيدا كړي خو شيطان يې نه دې پيدا كړې هغه خپله پيدا شوې دې.

(٦) **والشريكية قالوا ان السيئات كلها مقدرة الا الكفر.**

(٧) **والوهمية قالوا ليس لأفعال الخلق وكلامهم ذات ولا للحسنة والسيئة ذات.**

دا منكر تَلل د اعمالو نه دي دا وايي څه ذات نه لري څه شي تلل كيږي:

(٨) دله والزبرية: **قالوا كل كتاب نزل من عند الله فالعمل به حق ناسخا كان او منسوخاً.**

يهوديت، نصرانيت تورات انجيل زبور باندې عمل به يې جائز ګڼلو.

(٩) **والسعدية زعموا ان من عصى ثم تاب لم تقبل توبته.** د عاصي توبه وايي نه قبليږي.

(١٠) **والناكثية: زعموا أن من نكث بيعة رسول الله صلى الله عليه وسلم فلا إثم عليه.**

بیعت چې چا مات کړو ګناه نه لري .

(۱۱) القاسطية : تبعوا ابراهيم بن النظام في قوله من زعم ان الله شيء فهو كافر .

که چا وویل چې خدای تعالی شي دي نو کافر کیږي .

(۱۲) الصلتية : التبصير في الدين جلد ۱ صفحه ۵٦-۲٦:

ومنهم الصلتية وهم أتباع صلت بن عثمان وقيل صلت بن أبي الصلت وهؤلاء يقولون انا

نوالي كل من كان على مذهبنا .

که زمونږ د مذهب موافق وي موالات ورسره کوو .

ولكنا نتبرأ عن اطفالهم الى ان يبلغوا . او دا ماشومان یې چې دي هغوی نه مونږ بیزار

یو ترڅو چې بالغان شي ، چې بالغان شي .

ونعرض عليهم الاسلام فيقبلوه يريدون به عرض مذهبهم .

یعنې مونږ ورته خپل مذهب پیش کوو که ماشومانو بلوغ نه بعد قبول کړو بیا موالات

ورسره کوو ګنې ترک موالات دي .

## وانقسمت الجهمية اثنتي عشرة فرقة :

(۱) المعطلة : زعموا أن كل ما يقع عليه وهم الانسان فهو مخلوق و ان من إدعي أن الله

يرى فهو كافر .

که وایي چا وویل چې د خدای تعالی په ورځ د قیامت دیدار کیږي نو دا وایي کافر دي.

(۲) والمريسية : قالوا اكثر صفات الله مخلوقة .

(۳) والملتزقة جعلوا الباري سبحانه في كل مكان .

دوي وایي خدای تعالی په هر ځای کې دہ .

زمونږ عوام هم دا خبره کوي چې خدای تعالی په هر ځای کې ده دا خبره غلطه ده ددوي

مقصد ښه دي چې کوم مقصد لري خو تعبیر د خپل مقصد نه نه شي کولې دوي وایي چې

خالق په عرش ناست ده او مکان مه ثابتوي ورته منکر د مکان دي من الله تعالی خو چونکې

د هغې نه تعبیر نه شي کولې خدای تعالی په هر ځای کې ده نو دا ځای ته مکان وایي که نه یې

وایي یو عرش ورته نه مني او هرځای دي ورته مکان مکان کړو ځمکه دي ورته ومنلو اسمان دي ورته ومنلو .

دوي په خپل زړه کې روغه خبره کوي خو د خپلو الفاظو نه صحیح تعبیر نه شي کولې ،

دې باره کې ۳ نصوص متضاد راغلي : ﴿الرَّحْمَنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوَى﴾ ظاهر د نص بدون د تاویل نه استوی ثابتوي .

﴿أَأَمِنتُم مَّن فِي السَّمَاءِ أَن يَخْسِفَ بِكُمُ الْأَرْضَ﴾ دا في السماء ظرف د من لپاره کړو کنه او هغه عبارت د ذات الله نه دي نو دا ایات دا ثابتوي چې اله العالمین یې في السماء کړو او هغه ایات یې علی العرش کړو .

وهو الله في السموات وفي الارض . که څوک وایي زه تاویل کومه هو الله دي معبود دي في السمواة وفي الارض نو چې دلته تاویل کوي نو تاویل خو هلته هم کیږي .

- عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه دا تاویل منقول دي :

الرحمن علی العرش استوی ، ای استولی .

تفسیر ابن السعود چې کوم دي د الرحمن علی العرش استوی معنی په ۸ سپاره کې د ابن مسعود رضي الله عنه نه په استولی سره نقل کړې ده نو تاویل نه بغیر دا دري ایاتونه متضاد بنکاریږي یو ایات یې في الارض ثابتوي بل یې في السماء ثابتوي بل یې علی العرش ثابتوي اوس که یو سړي وایي علی العرش دي في السماء في الارض نه دي ددې دوه ایاتونو نه انکار راغلو .

که یو سړي وایي في السماء دي علی العرش نه دي في الارض نه دي دې ۲ ایاتونو نه انکار راغلو ، که یو سړي وایي چې في الارض دي في السماء نه دي علی العرش نه دي دې نه انکار راځي مسلمه عقیده دا شوه چې دا ایاتونه به د متشابهاتو نه شي ددې نچوړ به دا شي چې خالق کائنات کې موجود دي .

ابن حجر عسقلاني رحمه الله فرمایي چې د خدای تعالی نه سوال کول په أین سره کول هم جائز نه دي ، چې چیرته دي دغه سوال به هم نه کوي ته خو د ذات الله تفکر کوي او تفکر د

ذات الله خو ممنوع دي هلته تفکر نه شي، کولی شي په ځای صفات الله کې تفکر وکړه.

نبي عليه السلام ته څه یهودیان راغلل او نبي عليه السلام ته يې وويل چې مونږ ته د خپل رب نسب بیان کړه نبي عليه السلام وژړل حتی چې غشي پرې راغله نو نبي عليه السلام ورته وويل چې زه درته د لمر نه شم ویلی چې د لمر حقیقت څه شي دي زه به د خالق د ذات تاسو ته څه وایمه نو د خالق په ذات کې تفکر ممنوع دي د هغه نه په آیمن سره سوالونه ممنوع دي دا ثابتیږي چې خالق موجود دي.

اوس که چا وویل چې علی العرش نه دي دا خبره غلطه ده داسې به نه وايي چې علی العرش نه دي د الرحمن علی العرش استوی مخالفت راځي، که چا وویل چې في السماء نه دي د آأمنتم من في السماء مخالفت راځي، که چا وویل چې في الارض نه دي د هوالله في السموات وفي الارض مخالفت راځي نو مکانونه مه ثابتوي مه څمکه مه اسمان مه عرش دا مکان کوه مه ورته خو انکار هم مه کوه چې علی العرش نه دي في السماء نه دي في الارض نه دي ذې نه هم انکار مه کوه.

بس نچوړ یې دا شو چې باري تعالی په کائنات کې موجود دي او که وهابیان دلیل کې دا پیش کوي چې نبي عليه السلام د معراج په شپه بره تللي وه هلته خدای تعالی وه دا خو هسې بې ځایه استدلال دي ځکه چې موسی عليه السلام کوهِ طور ته تللي وه له اُوني اواز راغلې وه چې اني انا الله. اوس دلته څه تعبیر کوي تهول د متشابهاتو نه دي نو دا دلیل د في الأرض نه شي کیدلی او هغه دلیل د في السماء نه شي کیدې دا دواړه مکانونه دي حادث دي یو وخت کې دا نه وه خالق وه نو هغه وخت کې د خالق باره کې څه عقیده لرل په کار وه اوس هم هغه په کار ده.

یواقیت الجواهر کې امام شعراني رحمه الله دغه ایاتونه راخلي او ډیر ښه جواب کوي وايي چې څوک ذې کې مشوش وي هغه دې دا تفکر وکړي چې یو وخت کې عرش نه وه اسمان نه وه څمکه نه وه څه هم نه وه خالق وه نو وه څنګه چیرته وه عقل په کې کار نه کوي چې نه يې کوي اوس هم دغه شان عقیده جوړه کړه چې خالق موجود ده په کائنات کې باقي تفکر د ذات نه مونږ ممنوع یو چې خالق موجود ده په کائنات کې باقي تفکر د ذات نه مونږ ممنوع یو ذات کې به يې سوچ نه کوو بطور مثال العیاذ بالله چې لاسونه به يې څنګه وي سترګې

بەیې څنګەوي داد مجسمەوو عقیدې نەسرې راکاوي بلکې بت پرستي ده.

(۴) جماعت د جهمیه: الواردیة: قالوا لا یدخل النار من عرف ربه ومن دخلها لم یخرج منها ابداً.

څوک چې په ګناه ورشي بیا ترې نه شي وتلې خو عارف نه شي تلي هغوي ایمان عبارت د معرفت نه ګرځوي.

(۵) والزنادقة: قالوا لیس لاحد ان یثبت لنفسه رباً.

یو سړي ځان ته رب نه شي ثابتولې.

لان الاثبات لا یکون الا بعد إدراك الحواس.

وایي ځکه اثبات نه راځي وروسته د إدراك الحواس نه.

وما لا یدرك لا یثبت. چې شي حواس نه درک کوي نو منل یې نه دي په کار نو د رب نه منکر دي دا.

(۶) والحرقیة: زعموا أن الکافر تحرقه النار مرة واحدة ثم یبقی محترقاً ابدا.

یو ځل به یې وسوزوي بیا به جهنم کې سوزیدلي پراته وي.

لا یجد حر النار، بیا دوباره نه پیدا کوي حرارت د اور.

(۷) والمخلوقیة: زعموا أن القرآن مخلوق.

(۸) والفانیة: زعموا أن الجنة والنار یفنیان. دا به فنا کیږي.

ومنهم من قال لم یخلقا. بعضې وایي چې دا بالکل لا پیدا شوې هم نه دي.

(۹) والعبدیة: جحدوا الرسل وقالوا انما هم حکماء. د رسولانو نه انکار کوي وایي دا هوښیار خلک وه.

(۱۰) والواقفیة: قالوا لا نقول ان القران مخلوق ولا غیر مخلوق. موتږ ورته نه مخلوق ویلي شو او نه غیر مخلوق.

(۱۱) والقبریة: ینکرون عذاب القبر والشفاعة. داد عذاب قبر او شفاعت منکر دي.

دلته پاکستان کې دا ډېر زيات دي عثمانيان ورته وايي ، ښکاره د عذاب قبر منکر دي او دا پنجپيريان هم د عذاب قبر منکر دي دوي په بل شکل انکار کوي .

دوي وايي قبر کې هيڅ هم نشته دې روح يا عليين ته لاړ شي تنعم هلته دي او يا سجين ته لاړ شي تعذيب هلته دي سجين کې منو خو په قبر کې نه منو ، دوي وايي هغه روح ته تکليف ورکول کيږي باقي تنه دده خرابه شي ضايع شي ده ته څه عذاب نشته دي دا ختموي او دا ميت بلا روح وي او زمونږ اهلسنت دا وايي چې صحيح ده روح دده سجين ته لاړو او يا د نيک عليين ته لاړو خو د دغه روح له دغه تني سره يو ربط شته دي د هغه ربط په وجه دغه تنه تنعم هم حاصلوي او دغه تنه عذاب هم حاصلوي او په هغې پوهيږي درکي کوي او د هغې مثال د لمر دي چې اثريې ښکاره دي په ځمکه کې او لمر په کومه دونيا کې ده .

(١٢) جماعت : واللفظية : قالوا لفظنا بالقرآن مخلوق .

## وانقسمت المرجئة اثنتي عشرة فرقة :

(١) التاركية : قالوا ليس لله عز وجل على خلقه فريضة سوى الايمان به . صرف ايمان دي نور څه نشته او چې ايمان چا قبول کړو .

فليفعل ما شاء . چې څه کوي بس کوي دي .

(٢) والسائبية : قالوا ان الله تعالى سيب خلقه ليفعلوا ما شاءوا . دا هم هغه اولې دلې ته قريب دي ، وايي خلک يې خوشي کړي چې څه کوي هغه به کوي .

(٣) والراجية : قالوا لا يسمى الطائع طائعاً ولا العاصي عاصيا لأنا لا ندري ما له عند الله تعالى .

نه به نيک ته نيک وايي نه به بد ته بد وايي مونږ ته معلومه نه ده چې عند الله يې څه فيصله ده .

(٤) والسالبية قالوا الطاعة ليست من الإيمان .

(٥) والبهيشية : قالوا الايمان علم ومن لا يعلم الحق من الباطل والحلال من الحرام فهو كافر . غير عالم کافر ګڼي .

(٦) والعملية: قالوا الايمان عمل.

(٧) والمنقوصية: قالوا الايمان لا يزيد ولا ينقص. كم ايمان.

الايمان الكامل الذي هو مترادف مع الإسلام.

كوم ايمان چې مترادف د اسلام سره دي چې ايمان كامل دي چې هغه سبب دي لپاره د نجات من النار بالكل د اور نه دي خلاصوي هغې ته لا يزيد ولا ينقص وايي نو دا مرجئه دي يا احناف چې كوم قول كوي دغه ايمان نه يادوي هغوي ايمان مطلق يادوي ايمان كامل نه يادوي .ايمان خو كمال ته په عمل رسيږي هغه مترادف له اسلام سره دي عمل زياتيږي نو ايمان خپله زيات شو يو ايمان مطلق دي چې هغه د خلود د جهنم نه ناجي دي نه د نفس جهنم نه هغه ايمان يزيد وينقص قول امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ كړې دي.

(٨) والمستثنية: قالوا الإستثناء من الإيمان.

(٩) والمشبهة: قالوا بصر كبصر ويد كيد.

(١٠) والحشوية: قالوا حكم الاحاديث كلها واحد. حكم د احاديثو يو دي.

فعندهم ان تارك النفل كتارك الفرض.

(١١) الظاهرية الذين نفوا القياس. هغه دي چې قياس نفي كوي وايي چې قياس نشته دي داد مرجئه (١١) ډله ده نن صبا وهابيان هم دي كې دي.

(١٢) والبدعية: اول من ابتدع هذه الاحداث في هذه الامة.

## وانقسمت الرافضة اثنتي عشرة فرقة:

(١) العلوية: أن الرسالة كانت إلى علي وأن جبرائيل اخطأ.

(٢) والأمِرية قالوا إن عليا شريك محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في أمره. چې رسالت دي.

(٣) والشيعة: قالوا إن علياً رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ووليه من بعده وإن الأمة كفرت بمبايعة غيره. تمام صحابه كافر كوي نعوذ بالله.

(٤) والاسحاقية: قالوا أن النبوة متصلة الى يوم القيامة. دوي د ختم نبوت منكر دي.

وكل من يعلم علم اهل البيت فهو نبي .

(۵) والناووسية : قالوا علي افضل الأمة فمن فضل غيره عليه فقد كفر .

(٦) والامامية : قالوا لا يمكن أن تكون الدنيا بغير إمام من ولد الحسين .

وإن الإمام يعلمه جبريل عَلَيْهِ السَّلَام فاذا مات بدل غيره مكانه . دوي وايي يو امام به خامخا وي .

(۷) والزيدية : قالوا ولد الحسين كلهم أئمة في الصلوات فمتى وجد منهم احد .

وايي چې كله حسيني او سيد موجود وي :

لم تجز الصلاة خلف غيرهم برهم وفاجرهم .

نيک وي که بد وي خو چې حسيني سيد موجود وي بل چا پسې مونځ جائز نه ده .

(۸) والعباسية : زعموا أن العباس كان أولى بالخلافة من غيره .

(۹) والتناسخية : قالوا الأرواح تتناسخ .

دا په دوي کې صوفيه دي قائلين دي د ارواحو د تناسخ چې دا روح يو نه وځي ځي چيرته نه دا وايي بل كې ننه شي وايي نبنه يې دا وي چې هغه سړي ډير مالداره شي دا ديو بنه سړي روح په كې ننوتلې وي د هغه بركات په ده ښكاره شي .

(۱۰) والرجعية : زعموا أن علياً وأصحابه يرجعون إلى الدنيا وينتقمون من أعدائهم .

(۱۱) واللاعنة : يلعنون عثمان وطلحة والزبير ومعاوية وابا موسى وعائشة وغيرهم .

(۱۲) والمتربصة : تشبهوا بزي النساك ونصبوا في كل عصر رجلاً ينسبون اليه الامر يزعمون انه مهدي هذه الامة فاذا مات نصبوا آخر .

## ثم انقسمت الجبرية اثنتي عشرة فرقة :

(۱) فمنهم المضطرية : قالوا لا فعل للادمي بل الله يفعل الكل .

بنده څه فعل او كسب نه لري څه چې دي نو خداى تعالى يې كوي نو دغه عقيده د جبريه وو مضطريه فرقې ده چې هر څه خداى تعالى كوي بنده هيڅ نه شي كولې دا د اهلسنت

عقیده نه ده اهلسنت دا عقیده لري د ټولو اشیاو خالق خدای تعالی دي .

ددوي مقابله کې قدریه وو کې معتزله دي چې هغوي د شر خالقین عباد ګڼي او د خیر خالق الله ګڼي او شیطان وایي خپله پیدا شوې دي د کفر خالق بنده ګڼي د زنا ، غلا خالق بنده ګڼي دا په دې کې چې د خدای تعالی تنزه دوي ثابتوي چې ولې نسبت د قبیح خلق هغه ته وکړو هغه خو ډیر پاک ذات دي نو اهلسنت په وسط کې راغلل چې د ټولو اشیاو خالق الله تعالی دي والله خلقکم وما تعملون .

او د ټولو اشیاو کاسب او کولو والا دا بنده دي هر څه خدای کوي دا غلطه خبره ده هر څه خدای تعالی پیدا کوي څومره کارونه چې دي دا مخلوق ته سپارلې شوي که خیر دي او که شر د خیر نه صلوات دي خو خالق ته یې نسبت د کولو نه کیږي د پیدا کولو یې کیږي او د شر مثال د غلا او زنا ده خو خالق ته یې نسبت د کولو کفر دي مخلوق ته یې نسبت کیږي که دا څوک وایي چې هر څه د خدای په اراده باندې کیږي نو دا خبره صحیح ده .

جمیع افعال العباد بارادته ومشیته . داد شرح عقائد متن دي ټول کارونه د بنده ګانو د خدای تعالی په ارادې باندې دي په مشیت باندې دي .

عند اهلسنت لا کما زعمه الجبریة ان لیس للعبد فعل اصلاً .

خو دلته به لږ ځان پوهوي چې هر څه د خدای تعالی په اراده کیږي دلته د اهلسنت سره د جبریه وو یوه بله ډله ده معمولي فرق لري هغه فرق دا دی چې جبریه وو کې یوه ډله خو داده چې بالکلیة مخلوق څه نه شي کولې .

دویمه ډله داده چې هغوي وایي هر څه د خدای په اراده کیږي او مخلوق د خدای له ارادې نه بغیر څه شي نه شي کولې خو د خدای تعالی دا اراده بیرته د خیله په دې کسب کې ګڼي او د خدای تعالی په اراده دا بنده مجبور ګڼي دا بیا جبریه دي دا هغه فرقه ده لو شاء الله اطعم مونږ ته وایي چې غریبانو ته روټي ورکړه .

که د خدای خوښه واي طعام به یې ورکړې وای کنه دا چې مونږ طعام نه ورکوو دا خو د خدای اراده نه ده شوې ګوره هغه خپل کار کې به یې د خدای اراده دخیله کړه او ځان به یې پرې مجبور کړو الملل والنحل کې امام شهرستاني رحمه الله ذکر کوي وایي دغه جبریه چې دي

داد ارادې والا واى داد مشركينو جماعت دي دغه ايات يې پيش كړي دي: وهل هذا الا تصريح بالجبر. دغسې خبرې چې څوک كوي چې د خداى په اراده كيږي او اراده يې ته كسب كي دخيله گرخوي وايي دا سوچه جبر دي دا صراحت په جبر سره دي هر څه د خداى تعالى په اراده باندې دي خو اراده د خداى تعالى مؤثره خلق كې ده په كسب كې نه ده.

د شرح عقائد متن چې پوره وكتل شي نو بيا درته ښكاره كيږي د خداى تعالى اراده مؤثره په خلق كې ده په كسب كې نه ده لكه زه يو شي را اخلم دلته زما په دې زړه كې يو قصد راغي دا كار لاما كړې نه دي زما دې زړه كې قصد راشي زه اراده وكړم هغه اراده نه چې معي د فعل سره ده هغه اراده په نوم د قصد مصمم سره چې زه يې زړه كې راولاړه كړم چې زه څنگه اراده وكړمه زما هغه اوله اراده هغه د قصد قلبي اراده ياد ومه اثر لا هيڅ هم نه دي ښكاره عمل لا نه دي شوي ددې شي او چتول يو عمل دي زه دې زړه كې اراده كوم قصد كوم چې زه به دا شي را اخلم.

شرح عقائد څه ليكي:

عقيب ذلك يريد الله تعالى الخلق.

چې زه څنگه ددې قصد وكړم دغي نه وروسته خداى تعالى ددې خلق اراده وكړي زما د پاره دا كار پيدا شي نو زه هغه اراده استعمال كړم چې كومه معي مع الفعل ده را او چتيږي كړمه نو دا شي داخل شي تحت القدرتين وتحت الارادتين ارادة الله تعالى من حيث الخلق والايجاد وارادة العبد من حيث الكسب والاكتساب. زما كار كسب دي او د خالق كار ايجاد دي نو چې هر څه د خداى په اراده كيږي دا سمه عقيده ده خو ددې نچوړ دادى چې خداى تعالى د كل اشياء خالق دي ددغه الفاظو په ځاى د هغه الفاظو تعبير وكړه صحيح ده كنه هر څه د خداى تعالى په اراده كيږي د الله اراده مؤثره په خلق كې ده نه په كسب كې نو چې په خلق كې ده نو د الله تعالى د ارادې په خلق كې د تاثير مقصد هم دغه دي چې دا شي پيدا كوي.

نو لنډ وو ايه چې هر څه خداى تعالى پيدا كوي جبريه وو سره اهل سنت ډير فرق نه لري تقريبا ۱۹-۲۰ فرق دي دغه جبريه چې كوم اراده اراده په كې يادوي چې هغه كوم اراده نه

یادوي د هغوي فرق زمونږ سره خو بداهتاً ضروري فرق دي او هغه خو لحن لفرق بین حرکة البطش وحرکة الارتعاشي بالبداهة ، د ګوزندوالي حرکت او د بطش حرکت دا خو بداهةً فرق لري کوزندوالا اختیار نه لري زه اختیار لرم هغه مضطریة فرقې چې کومه عقیده ساتلي هغه خو فرق لري چې مخلوق څه نه شي کولې هغه خلک چې اراده په کې یادوي د هغوي سره بیا د اهلسنت فرق ډیر عمیق دي او ډیر معمولي باریک فرق دي هغوي ددې ارادې له وجې نه دا مخلوق مجبور وګڼه او هغه تقدیر چې په ازل کې شوې دي د هغې د لاسه یې حرکات د عبادو وګرځول .

او اهلسنت څه کار کوي چې ددې تقدیر له وجې نه حرکات د عبادو نه دي بلکې دحرکاتو د عبادو د تقدیر ریکاډ شوې دي دغومره معمولي فرق دي په کې غېږیدل هم جرم دي خو که دې خلکو دا خبرې نه کولې نو مونږ به ولې کولې دفاعي حالات دي چې مونږ یې استعمالو ګڼي چونکې دا تکلم د تقدیر په باب کې فقها. شنیع ګڼلي امام ابي یوسف رَحِمَهُ اللّٰهُ قاضي ابي یوسف دربار ته راغي څه علماء په همدې مسئله نختي وه او هارون الرشید بادشاه ورته وایي قاضي صاحب فیصله وکړه څادریې وځنډه ترې روان شو وایي نن قضاء ته کینمه هم نه دا وایي داسې ښه کار کې نه دي لګیا چې زه یې فیصله وکړم په دې کې به یې فیصله نه کوله .

امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي دې مسئله کې چې بحث کوي وایي مخ ورته تور کړي او په اوښ یې سور کړي او دا مخ یې د لکي خوا ته کړي او د لکي دا اوښ په خوله کې ورکړي او د چیړو هار ورته واچوي په غاړه کې بازار کې وګرځوي چې څوک تقدیر کې غږیږي دا به یې سزا وي علماء دومره دې کې بحث بد ګڼي دغه جهالو دغه مسئله زیرِ بحث کړه .

مونږ د مجبورۍ نه دې ته راغلو ګنې زه خپل شاګردان دې نه سخت منع کومه چې دا مسئله زیرِ بحث مه ګرځوي او انتهائي ژوره مطالعه د علم کلام چې نه وي په کې ګمراه کیږي نه رسیږي هغه حق ذهن ته دي .

شیخ حسن جان رَحِمَهُ اللّٰهُ به یو مثال ورکوه او ډیر عام فهم مثال به یې ویلو هغه دا مثال ورکوي چې شیشه به یې څان ته ونیوله دې شیشه کې به یې سر وخوزوه حرکت به یې ورکړو هلته په شیشه کې به هم سر وخوزیدلو دا چې کوم خلک اراده یادوي او جبریه دي او

اهلسنت ددوي مينځ کې دومره فرق دي جبري وايي، وايي دا زما سر څکه خوزيږي چې هغه شيشه کې تصوير خوزيدلي دي د هغه د لاسه زه خوزيږمه اهلسنت وايي چې تا دا سر نه واي خوزولې هغه شيشه کې نه خوزيدلو خو ستا د خوزيدلو نه هلته خوزيدل راغلل د غه شيشه کې تصوير د غه مثال د تقدير دي.

جبري وايي چې تقدير کې څه شو د هغې نه زه مخالفت نه شم کولې ولې هغه ما خوزوي د غه وخت کې که مونږ ليکلي وي زه مونږ کومه او که زنا يې ليکلي وي زنا کومه زما په کې څه اختيار دي د زنا په وخت کې به يې مونږ راته ليکلې واى کنه ماته به يې تول مونځونه ليکلې واى زنا به يې نه ليکلي ګوري ځان خو يې مجبور کړو کنه د تقدير د لاسه يې ځان مجبور کړو.

اهلسنت وايي چې خداى تعالى په تا عالم وه ازلاً چې ته بد بخته به په دغه وخت کې زنا کوي ځکه يې درپسې وليکله خو د هغې د لاسه په تا زنا نه ده شوې تا په خپل اختيار باندې کړې ده ضرور دي چې دلته يو فرق وشي په مينځ کې او د خداى تعالى د تقدير د لاسه ځان ونه خوزول شي داسې مثال يې دي ګوري زما نه دې کامرې ريکارډ وکړو او صباتاسو په ويډيو کې ګوري او هغې کې زه خوزيږم خو زه دلته خوزيدلې يمه چې هلته ريکارډ شوې دي کنه نو داسې خو نه ده چې زه د ريکاډ له وجې نه حرکت کوم زما له خوزيدو نه ريکاډ جوړ دي.

هغه تقدير دغه شان تصوير دي دغه شان معامله ده دغه شان ريکاډ دي دا ريکاډ زمونږ د خوزيدو نه جوړ دي خو د ريکاډ د لاسه زمونږ خوزيدل نه دي نو جبريه مونږ سره دغه فرق لري هغوي وايي دا هر څه تقدير کې دي که هغه نه وايي نو مونږ به دا کارونه نن نه کول ځان مجبوروي وريانډې مثال يې د ونې ورکوي چې باد پرې راشي خوزيږي کنه نه خوزيږي دا محض د جبريه وو مثال دي ونې سره ته کله مماثل يې هغه اختيار نه لري اراده نه لري عزم نه لري ته اختيار لري عزم اراده لري کله مثال د قلم سره ورکړي چې کاتب يې خوزوي او خوزيږي ګنې نه خوزيږي دا جهال اميان تبليغيان دا هم د محراب خوا ته دا مثالونه عوامو ته ورکوي.

ـ نو ته کله د قلم په شان يې قلم کې حرکت نشته جماد دي اختيار نه لري انسان اختيار لري ډيره خطرناکه فرقه ده ، لعنة المرجئة على لسان سبعين نبياً .

د مرجئه وو شرحه ملا علي قاري رَحِمَهُ‌اللهُ وايي :

**والحق أن المرجئة هم المجبرة الذين قالوا أن ليس للعبد فعلاً أصلاً .**

حقه داده چې مرجئه جبریه فرقه ده هغه ده چې وايي بنده څه نه شي کولی .

اويا (۷۰) پیغمبرانو په دې جماعت باندې لعنت ويلې دي .

**(۲) والأفعالية : قالوا لنا افعال ولكن لا استطاعة لنا فيها .**

زمونږ کارونه شته خو طاقت په کې نه لرو .

**وانما نحن كالبهائم نقاد بالحبل .** او مونږ د بهائمو په شان يو چې راخکلي کيږو حبل نه مراد تقدير يادوي تقدير مو راکاږي .

تبليغي جماعت والا کې چې کوم جهال دا وايي چې هر څه خدای کوي مخلوق څه نه شي کولی دا په جبریه وو کې مضطریه فرقه ده کوم طالبان او علماء ددوي چې اراده اراده ورکې يادوي هر څه د خدای په اراده کيږي او ځان بیا هم مجبور ګڼي او مثالونه د جبریه وو پیش کوي هغه دا فعالیة فرقه ده افعال مني ځان ته خو اختيار په کې نه مني .

**(۳) والمفروغية : قالوا كل الاشياء قد خلقت والأن لا يخلق شيء .**

هر څه مخکې پیدا دي اوس څه نه پیدا کيږي .

**(۴) والنجارية : زعمت ان الله تعالى يعذب الناس على فعله لا على فعلهم .**

د خلکو په اعمالو تعذيب نه دي خدای تعالی چې تقدير کې څه جوړ کړې وي د هغې موافق تعذيب دي .

**(۵) والمنانية : قالوا عليك بما يخطر بقلبك فافعل ما توسمت منه الخير .**

وايي څه چې دي په زړه کې راځي په هغې عمل کوه يعني **استفتي قلبك استفتي نفسك وان اخطاك المفتون .**

دا خو نبي عَلَيْهِ‌السَّلَام دا امر کړې وه خو داسې چا ته يې کړې وه چې قلب يې صفا وه نفس تزکیه وه هر سړي خو يې نه شي کولی دا دله ټول داسې وايي نه نه فتوو پسې مه ځه زړه ته متوجه شه .

(٦) والكسبية قالوا لا يكتسب العبد ثواباً ولا عقاباً .

(٧) والسابقية : قالوا من شاء فليعمل و من شاء فلا يعمل فأن السعيد لا تضره ذنوبه والشقي لا ينفعه بره .

تقدير ته ځان سپاري .

(٨) والحبية قالوا من شرب كأس محبة الله تعالى سقطت عنه عبادة الأركان .

چا چې پياله د محبت د خداى تعالى وڅكله ساقط شو له ده نه عبادت د اركانو .

(٩) والخوفية قالوا من أحب الله تعالى لم يسعه أن يخافه لأن الحبيب لا يخاف حبيبه .

څوک چې خداى تعالى سره محبت لري جائز نه دي ده لره چې ترې وډار شي لان الحبيب لا يخاف حبيبه .

(١٠) والفكرية قالوا من ازداد علماً أسقط عنه بقدر ذلك من العبادة .

علم چې زياتيږي عبادت تر ورو ورو ساقطيږي .

(١١) والخشبية قالوا الدنيا بين العباد سواء لا تفاضل بينهم فيما ورثهم أبوهم آدم .

دا سم د خلقيانو مذهب دي زر زمين شريک دي د شريک خبره کوي چې دا ځمکي دي ټول يو شان تقسيم شي .

(١٢) والمنية قالوا منا الفعل ولنا الإستطاعة .

کارونه هم زمونږ نه دي او استطاعت هم زمونږ نه دي ، يعني دا مونږ خپله پيدا کړي دي قدريه وو سره يې لږ فرق شته وايي کارونه منا زمونږ نه دي مونږ يې کوو خو دې سره چې کوم طاقت دي خداى نه دې راکړي په زنا باندې طاقتونه بلکي دا مونږ خپله پيدا کړي دي.

اوس ددې فرقې په رد کې څه روايات ذکر کوم :

سنن ابي داؤد جلد ۴ صفحه ۳۵۷ :

حدثنا موسى بن اسماعيل حدثنا عبدالعزيز بن ابي حازم قال حدثني بمنى عن ابيه عن ابن عمر عن النبي صلى الله عليه وسلم قال القدرية مجوس هذه الأمة إن مرضوا فلا تعودوهم وإن

ماتوا فلا تشهدوهم .

دا مخکې هم تیر شوې دي .

دویم روایت کې فرمایي جلد ۴ صفحه ۳۵۷ :

حدثنا محمد بن کثیر اخبرنا سفیان عن عمر بن محمد عن عمر مولی غفرة عن رجل من الانصار عن حذیفة قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لکل أمة مجوس ومجوس هذه الأمة الذین یقولون لا قدر من مات منهم فلا تشهدوا جنازته ومن مرض منهم فلا تعودوهم وهم شیعة الدجال وحق علی الله ان یلحقهم بالدجال .

المجالسة وجواهر العلم جلد ۳ صفحه ۲۱۸ :

حدثنا عباس بن محمد الدوري حدثنا عثمان بن زفر حدثنا ابومعشر عن سعید عن أبي هریرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لکل أمة مجوس ومجوس هذه الامة القدریة فان مرضوا فلا تعودوهم وان ماتوا فلا تشهدوهم وان لقیتموهم في طریق فالجئوهم الی اضیقه .

که په لاره په مخه درغله تنګوي یې د کافرو سره چې کوم تشدد په کار وي .

داد یهودو باره کې هم راځي چې په لاره په مخه درغي تنګي ته یې ور جوړ کړه یعني داسې لار مه ورکوه سم یې تنګي ته برابر کړه تکلیف یې کړه ، اوس انګریزان مونږ تنګوي لارې راباندې بندوي انګریزان پوهیږي چې د نبي علیه السلام دې خبره کې څه مقصد شته دي هغه حدیث اوس دوي عملي کړو په مونږ باندې .

دا غلبه به څه وخت د پاره وي خو دائمي به نه وي نبي علیه السلام دُعا کړې وه چې زما په امت به غیر نه مسلط کوي دا دُعا قبوله شوې وه دا تسلیط د څه ایامو دي په څه مواطنو متعددو دي په ټولو نه شي راتلې .

ټوله دنیا باندې ذوالقرنین علیه السلام بادشاهي کړې ده سلیمان علیه السلام بادشاهي کړې د مؤمنینو نه ، بخت نصر کړې ده او نمرود کړې ده .

اخري چې په ټوله دنیا بادشاهي کوي عیسی علیه السلام به یې کوي نو زمونږ تله پرې درنه شوه زمونږ به درې بادشاهان په دنیا بادشاهي وکړي او د کفارو به دوه بادشاهان

بادشاهي په تبوله دنيا وكړي.

دارنګې الذرية الطاهر للدولابي جلد ۱ صفحه ۱۸۳:

حدثني احمد بن يحيى الصوفي حدثنا ابراهيم بن محمد بن ميمون عن محمد بن حسين بن علي بن حسين عن ابيه عن جده عن النبي ﷺ قال يكون بعدي ثلاث فرق.

ما نه بعد دري فرقې به راشي:

مرجئة، حرورية و قدرية فان مرضوا فلا تعودوهم.

چې كله مريضان شي بيمار پرسي يې مه كوي.

وان ماتوا فلا تشهدوهم.

كه مړه شول جنازي ته يې مه ورځي.

وان دعوا فلا تجيبوهم.

كه دعوت يې دركړو نو دعوت يې مه قبلوي خوراج هم په دې كې راغلل.

دا مسئله د الفرق بين الفرق وه باقي د ايصال ثواب رايه د اهلسنت وه مقابل يې اهل زيغ وه كرامت د اهلسنت رايه وه مخالف يې معتزله دا په دغې جماعاتو كې راغلل، دارنګې عذاب قبر چې حق دي د اهل سنت رايه ده منكر ددې دغه جماعت تاسو ته ذكر شول دارنګې مثبتين د قياس اهلسنت دي او نافيين د قياس اهل ظواهر دا يوه ډله او جماعت په دغې كې راغي.

دغه شان نور بعضې مسائل چې هغه ثبت د سلفو كوي د اسلافو كوي يا خپل جماعت نه خارج كافر ګڼي چې دا اتفاقي د خوارجو عقيده ده هغه په دوي كې شته نو همدغه جماعات دي چې عقيدوي مخالفت د اهلسنت والجماعة سره لري او انتهائي زيات توجه دې مسئلې ته وركول په كار دي چې بايد سړي د اهل سنت تائيد وكړي او د اهل زيغو مقابله وكړي باقي رفع اليدين امين بالجهر دا څه فروعي اختلافات د ائمه وو په مينځ كې دي داد يو جانب بل ته ګمراه نه شي ويلي او نه دا ضلالت دي يا هم.

**مسئله د الفرق بين الفرق خلاصه شوه.**




بسم اللہ الرحمن الرحیم

# علماء احناف

# علماء حق

خادم عالمزیب الحنفی

+923452131285